**د کتاب ځانګړنې:**

**نوم:** ځنګه لیکوال شم؟

**لیکوال:** عبدالجمیل ممتاز

aj_mumtaz@yahoo.com

**خپرندوی:** نوی مستقبل خپروندیه ټولنه

**بریښنالیک:** moustaqble@gmail.com

**ډیزاین چارې:** خپروندیه ټولنه

**چاپکال:** ۱۳۹۸ ل

**چاپوار:** لومړی

**پتې:**

- میرویس میدان – د سیلو سړک – شاداب ظفر بلاکونو ته مخامخ- ۰۷۸٦٦۳۰۷۳۱
- دهمزنګ – لومړی سړک (مرکز عمومی کتابفروشی) ۰۷۷۸۸۷۰۳۰۵
- جوی شیر – د خپروندویه ټولنو او کتاب پلورنځیو عمومي مرکز- ۰۷۸۱۸۹۴۰٦۴



لیک د عقل زنځیر دی.

«**افلاتون**»

که څه هم لیک له جسماني ابزارو سره راڅرګند شوی؛ خو دا یوه روحاني هندسه ده. «**اقلیدوس**»

لیک د پوهې بڼ دی.

«**بوډلف**»

تر ټولو مهم ګام چې انسان د مدنیت پر لوري پورته کړ، همدا د لیک رامنځته کول و. «**وېل ډورانټ**»

# لیکـــلړ

## سریزه

د لیکلو هدف دا دی چې لوستونکي ته انګیزه، پیغام، احساس، فکر او په ټوله کې معلومات ولېږدیږي؛ هغه فکر او انګیزه یا معلومات چې لیکوال یې ترلاسه کوي او غواړي نورو ته یې ورسوي، نو د لیکلو لاره غوره کوي، ځو نه یوازې نورو ته ولېږدول شي، بلکې د راروانو نسلونو لپاره هم تلپاتې بڼه غوره کړي.

په بشري تمدن کې لیکل، د انسان لخوا یو ترټولو ستر ګام دی چې د ستونزو حل، پیغام رسولو، پوهې لېږدولو او ترلاسه کولو او همدارنګه د یوې لویې اسانتیا رامنځته کولو لپاره یې پورته کړی دی. که پوښتنه وشي چې لیک ولې رامنځته شو ؟ نو لنډ او روښانه ځواب یې همدا دی چې انسان د پېښو او پوهو د هېرېدو له کبله اړ شو، ځو ورمخې ته شوې پېښې او یا ترلاسه شوې پوهې ثبت او خوندي کړي.

زیاتره کسانو سره په ذهن کې ډېر نظریات او موضوعات پراته وي، خو دا چې د هغو د بیان او یا ټولنې ته یې د وړاندې کولو توان او جرأت نلري، نو مخکې له دې چې هغه د الفاظو یو جسم/بڼه غوره کړي، د هغه په سر کې بېرته دفن شي.

ټولنه د نویو فکرونو، دلایلو او ښوونو اورېدو یا ترلاسه کولو ته اړتیا لري او د دې اړتیا پوره کېدل یوازې د لیکوالۍ په مرسته کېدلای شي؛ خو البته په دې

برخه کې دقت، صداقت او مسوولیت له مهمو او لومړنیو اصولو څخه دي چې باید په پام کې ونیول شي.
په کتاب کې ټول همغه مواد راغونډ شوي چې یو محصل یا ابتدایي لیکوال یې د لیکوالۍ زده کولو په ترڅ کې اړتیا محسوسوي، البته دا هم د یادونې ده چې اړوند مواد له بې مورده او اضافه غځېدو او توضیحاتو پرته، په ډېره ساده او عامه ژبه بیان شوي چې نه یوازې لوستونکی یا زدکوونکی نه ستړی کوي، بلکې د ښه زده کیدو او پام وړ ګرځېدو جوګه هم ګرځي.

درنښت

ممتاز

## د لیک/لیکلو مخینه

**سومریان وایي:** د اوروک[1] پاچا المرکر د دې لپاره چې غوښتل یې د ارته د شتمن او ودان ښار پر پاچاهۍ واکمني وچلوي، نو د ارته پاچا ته یې د څواک ښودو په توګه دري څله له یوې لکړې سره خپل استازی واستاوه؛ خو دا چې د ارته پاچا پوهېد چې که لکړه یې په لاس کې واخیسته، نو خپله ماته یې ومنله.

روسته بیا المرکر په څلورم ځل یوه حیله جوړوي او هغه دا چې لیک رامنځته کوي؛ یعنې پر یو ختین توکي خپل فرمان لیکي او ارته ته یې استوي. کله چې د ارته پاچا د فرمان لوستو ته اړ کیږي، نو هغه په لاس کې اخلي؛ همغه و، چې د المرکر د واکمنۍ له منونکو څخه حسابیږي.

په هر حال، تر ټولو مهمه موضوع دا ده چې لیکل لومړی ځل (په تصویري بڼه) پر لوښو شوي، روسته بیا پر دیوالونو، ونو، ډبرو او... څیزونو باندې.

مصري بزګرانو له میلاد څخه درې- څلور زره کاله پخوا چې د خپلو کرنیزو حاصلاتو یوه برخه به یې د مالیاتو په توګه فرعون ته سپارله، د خپلو کورونو پر دیوالونو به یې د ورکړل شویو څیزونو په شمېر/اندازه د ټوکریو انځورونه کاږل او څنګ کې به یې ورته د شمېرلو لپاره ټاکلې نښانې کښلې.

هیروګلیف لیک(خط) چې تر ډېره په مصر کې دود و، له همدا ډول لیک څخه ګڼل کیږي. لرغون پوهانو د هیروګلیف خط له میلاد نه څلور زره کاله پخوا ګڼلی دی. دا لیک تر ډېره په افقي ډول، له ښي څخه کیڼ لوري ته او کله کله هم له کیڼ نه ښي لوري ته او کله هم له پاسه کښته خواته لیکل

[1] - اوروک: د ګیلګمش هېواد دی.

شوی دی؛ خو دا چې د تصویرونو د زیاتوالي له کبله ورو ورو انسانان کمزوري کېدل، نو تصویرونو ساده او نمونوي بڼه خپله کړه او د وخت په تېرېدا سره د هیروګلیف لیک کې بدلون راغی او ورپسې بیا قراردادي نښانې وټاکل شوې چې بیا د دغو نښانو په مرسته کلمې یا غږونه جوړ شول، تر ډېره خلکو ته اسانتیا رامنځته شوه او ورو ورو بیا مصور توري لکه په بابلي، سومري، عیلامي، سامي او میخي خطونو بدل شول.

دا بحث به همدلته پر دې را لنډ کړو چې بیا ورپسې لومړی ځل په یوناني او بیا په لاتیني ژبه د الفبا توري رامنځته شول، چې د وخت په تېرېدا سره یې پراختیا وموندله او اوس ګورو چې د نړۍ ټولې ژبې د تورو او لیک خاوندانې دي.

## ولې لیکل؟

ځکه چې انسان خپلو نظریاتو، انګېرنو، شواهدو او افکارو ته د تلپاتې کېدا، پراخېدا او لېږدېدا لپاره د تورو او الفاظو بڼه ورکوي.

**د لیکلو اصلي دلایل او ارزښتونه:**

١- د معلوماتو او پوهې د هېرېدا وېره.
٢- د معلوماتو او پوهې ثبت.
٣- د معلوماتو او پوهې خپرېدا (لېږد).

دا چې د دغه کتاب اصلي بحث د لیکوالۍ پر اصولو او مفاهیمو د پوهېدا لپاره ځانګړی شوی، ښه ده چې برابر پر خپل بحث پیل وکړو؛ خو یوه پوښتنه چې همدا اوس په ذهن کې را وګرځېده او همدغه اوس یې مطرح کول هم اړین دي، نو پکار ده چې له خپل بحث وړاندې لومړی دغې

پوښتنې ته لنډ ځواب وويل شي چې: آيا شاعري هم د لیکوالۍ برخه ګڼل کيږي؟

نه؛ ځکه چې د لیکوالۍ لپاره زدکړه لومړنی شرط دی او په شاعرۍ کې دغه شرط مهم نه ګڼل کيږي؛ بله دا چې په شعر کې د لیکلو موضوع مطرح نه ده؛ يعنې شاعر يوازې په خپل خيال کې شعر پنځوي؛ خو که يې ونشي ليکلی، دا بيا د شاعر نيمګړتيا ده، په شاعرۍ پورې نه تړاو لري او نه يې اصول تر پوښتنې لاندې راځي. البته دا چې دغسې حالت ډېر کم پېښيږي، دا بېله موضوع ده؛ خو که چېرې شاعر خپل شعر ليکلی هم شي، بيا هم د ليکونکي او ليکوال ترمنځ زيات توپير دی، چې په دې اړه به روسته رڼا واچوو؛ خو اوس دا ويلی شو چې شاعري شفاهي هم کيدلی شي؛ اما د ليکوالۍ تعريف بيا د تورو او لفظونو له کارولو پرته نيمګړی دی.

د بيلګې په توګه، موږ په پښتو ادبياتو کې يو شمېر نالوستي يا کم لوستي شاعران لرو. لکه: (ملنګ جان، محمد نور او...) چې خورا په زړه پورې او کمساري شاعري يې کړې ده؛ خو بيا هم دوی او نورو ته يوازې د شاعرانو خطاب کيږي، نه د ليکوالانو.

# ليكوالي

**ليکوالي څه ده؟**

مخاطب ته د ليکلو له لارې د افکارو، اندونو او پيغامونو لېږد، ليکوالي ده.

يا ويلی شو چې:

ليکوالي د زدکړې، مطالعې او تجربې يو داسې ترکيب دی چې پايله يې د ليکوال په فکر او خيال کې له تحليل او تجزيې روسته ټولنې، په ځانګړې توګه لوستونکي ته انعکاس کيږي.

**د ليکوالۍ لپاره بايد درې مهم ټکي په پام کې ونيول شي:**

١- زدکړه

٢- تجربه او تمرين

٣- مطالعه

**ښه ليکنه څنګه کيږي؟**

**ځواب:** لکه څنګه چې په سر کې مو يادون وکړ؛ ليکوالي د زدکړې، مطالعې او تجربې ترکيب دی؛ نو څکه خو په ډاډ ويلی شو چې يوازې په زدکړه او ښوونځي يا پوهنتون ته په ورتګ يا هم د ليکنې د فنونو په زده کولو سره يو څوک ليکوال کېدای نه شي.

دغه راز د ليکوالۍ د اصولو او قواعدو له پېژندو پرته، يوازې پر ليکلو تکيه هم څوک ياد هدف ته نشي رسولی؛ يعنې ليکوال جوړېدلای نه شي. مثلاً ديرش سلنه د اصولو زدکړې ته اړتيا ده، پاتې اويا سلنه تمرين او عملي کار مهم دی.

همدارنګه هېڅوک د زدکړې پر مهال یا د زدکړې په مرسته تر هغه وخته لیکوال شوی نه دی، څو یې په عملي توګه له همدغو زدکړو ګټنه نه ده کړې او په وار وار یې تمرین ته وخت نه دی ورکړی.

د یادولو ده چې د فطري استعداد او ذوق موضوع هم تر ډېره مهمه ده؛ خو که هر ځنګه وي، بیا هم د دې لپاره چې یاد استعداد او ذوق په یو ټولمنلي چوکاټ کې برابر راڅرګند شي، پاسني ترکیب ته په ځان کې د ځایولو لپاره اړتیا شته.

**له لیکلو وړاندې باید تل لاندې پوښتنې په پام کې وساتل شي:**

- څه لیکم؟
- ځنګه یې لیکم؟
- څه ته/ولې یې لیکم؟
- چا ته یې لیکم؟

**ابتدایي لیکوال** چې کله په لیکلو پیل کوي، نو خامخا تلولی او دوه زړی وي؛ یعنې حیران وي چې څه ولیکي؟ ځکه چې هغه د لیکلو لپاره ځانګړې سوژه نلري. کېدای شي ډېرې سوژې په ذهن کې ور وګرځي او یا هم په سترګو یو څه وویني؛ خو دا چې ورته د پام وړ نه وي او یا یې د درک توان نلري، نو هسې بابېزه یې ګڼي او زیات اهمیت نه ورکوي. همغه ده چې د سوژې موندل ورته داسې وي، لکه د غره په شا کول.

نو!

<u>لومړی</u> لیکوال ته د سوژې موندل او ځانګړي کول مهم دي، په دې معنا چې له لیکلو وړاندې باید سوژه ورته د پام او پېژندو وړ وي، څو وکولای

شي هغه په داسې روښانه توګه وړاندې کړي چې لوستونکی په اسانه ترې مفهوم او پیغام واخیستلای شي.

**دويم** د لیکوالۍ لومړیتوبونه په پام کې نیول دي؛ یعنې لیکوال باید د ټولنې د اړتیاوو، پرمختګونو، ستونزو/خنډونو، دردونو او په ټوله کې د عمومي وضعیت او ان د نړۍ په اړه کافي معلومات ولري. دا هغه څه دي چې په دې برخه کې له لیکوال سره خورا مرسته کوي او څومره چې دا معلومات پراخ او کره وي، همغومره لیکوال یې هم تشخیصولای شي چې څه ولیکي او څه نه؛ کومې خبرې او موضوع ته لومړیتوب ورکړي او کومې ته یې ورنکړي؟

**دریم** لیکوال باید د لیکوالۍ او لیکنې پر اصولو او مهارتونو پوه وي.

## سوژه يعنې څه؟

سوژه یعنې موضوع.

له اصله فرانسوي کلمه ده او د هغې موضوع په معنا کارول کیږي چې غواړو ورته پراختیا ورکړو او یا پرې بحث وکړو. اصطلاحي مفهوم یې دا دی چې له یوې پېښې یا چاپیریال څخه داسې یوې مفکورې، انګیرنې، پایلې یا الهام اخیستو ته وایي چې په مرسته یې کولای شو، یو بل څه وپنځوو یا یې له یو بل اړخه په یو هنري قالب کې ټولنې ته منعکس کړو.

شاید یو څوک وپوښتي چې یوه سوژه یا موضوع خو په یوه جمله کې هم بیانېدلی او په لنډ ډول یو عام پیغام لېږدولی شي؛ خو هغې ته بیا موږ لیکنه نه شو ویلی. دا چې موږ یوه لیکنه کاږو یا خپله ټاکلې سوژه په یو قالب لکه کیسه، ناول، مقاله یا نورو ادبي، علمي، اجتماعي، سیاسي ژانرونو کې

وړاندې کوو، نو طبیعي ده چې پکې اړوند فرعي موضوعات هم راګډوو؛ البته دا ګډول په دې معنا نه دي چې ګواکې د لیکنې اصلي موضوع ته صدمه رسیږي، ټول فرعي موضوعات د اصلي موضوع اړوند دي او راوستل یې هم یوازې د مرکزي یا اصلي موضوع د پراخولو، پر دلایلو د پیاوړې کولو او بالاخره د یوې لیکنې د تشکیلولو په موخه دي او بس.

**د بیلګې په توګه، یوه سوژه ټاکو او نوم ورکوو:** بې علمي

که چیرې وغواړو، پاسنۍ سوژې (بې علمي) ته په یوه جمله کې پراختیا ورکړو، نو لیکلی شو: «بې علمي انسان په تیاره کې پریږدي» یا «بې علمي بده بلا ده».

اوس دلته وینو چې زموږ د سوژې پراخېدل یوازې تر یو لنډ مزل (جملې) پورې محدود دي، نه پکې مخاطب مشخص شوی او نه هم دلایلو، څرنګوالي او نورو اړوندو پوښتنو او ځوابونو ته پکې ځای ورکړ شوی دی. البته یوه عامه خبره/جمله یا اصطلاح یې بللی شو؛ خو لیکنه یې نه شو بللی؛ ځکه چې د لیکنې یاد عناصر پکې نه ترسترګو کیږي.

دا چې زموږ بحث پر لیکوالۍ او لیکنې راڅرخي، نو د لیکنې لوستونکی باید په لیکنه کې د موضوع ترڅنګ د هغې پر دلایلو، څرنګوالي، وخت، لامل او نورو اړخونو هم وپوهیږي، چې دا ټول یوازې د لیکنې یا مقالې له لارې کېدای شي، نه د جملې یا کلمې له لارې.

**د سوژې موندل**

د سوژې یا موضوع موندلو لپاره حساس، اغېزمن او فعال ذهن ته اړتیا ده. د خلاق او روزل شوي ذهن په مرسته کولای شو چې هر وخت تازه او په زړه

پورې سوژې ومومو، ان دا چې په یوه ډېره عادي پېښه کې هم یوه په زړه پورې سوژه/سوژې پیدا کولای او هغه غځولی شو.

**ښه سوژه د لاندې اصولو له مخې موندل کیږي:**

۱- د ژوند/طبیعت، ژوبو او نړۍ په اړه په خپلو انګېرنو (برداشتونو)، تعریفونو او ذهنیت کې نرمښت راوستل او د بدلون پر اصل باور لرل.

۲- د ژوندانه تجربې او خاطرې ساتل.

(دوه ډلې انسانان په سمه توګه ژوند نشي درک کولای. یوه ډله- چې له ژوند څخه واټن نیسي او تل ګوښوالی او یوازیتوب خوښوي. بله- چې د ژوند په متن کې ډوبیږي چې دا هم نشي کولای د ژوند اصلي مفهوم درک کړي؛ دا ځکه چې له دوی نه لاره ورکه وي او حیران وي چې څه وکړي او څه ونه کړي؟ البته هغه څوک خپلې تجربې ذخیره کولای شي چې له نورو سره د نورو په شان ژوند وکړي او په عین وخت کې په هغو کې ورک هم نشي).

۳- د ښو او نویو کتابونو مطالعه، د نویو دوستانو پیدا کول (په ځانګړې توګه تجربه لرونکو او د زیاتو معلوماتو لرونکو دوستانو سره اړیکه ساتل خورا مهم دي).

۴- تل لوستل او لیکل (البته د یو ښه پلان او انتخاب له مخې).

**د ښې سوژې ځانګړنې:**

- ساده او روښانه
- تازه او په زړه پورې

- د لیکوال د پوهې په کچ برابره
- پر منطق برابره
- د لیکوال او لوستونکو د پام او باور وړ

**ساده او روانه لیکوالي**

که غواړئ د عمومي لیکنو په برخه کې ستاسو لیکنې د هر کچ او هرې ډلې خلک ولوستلی شي یا مفهوم ترې واخلي، نو هڅه وکړئ چې خپل فکر او ګوتې مو په ساده او روانه لیکنه عادت کړئ. لکه څنګه چې ساده او روانې خبرې کول هنر دی، همدغه شان ساده او روان لیکل هم یو هنر بلل کیږي.

**دا چې دغه هنر څنګه زده کیږي، لارې چارې یې دا دي:**

- په ساده ژبه د لیکل شویو کتابونو مطالعه.
- تمرین
- د کیسو او ناولونو لوستل.
- د عامو اصطلاحاتو او کلمو کارول.
- د لهجوي او نا اشنا نومونو او کلمو له کارولو ډډه کول.

## د لیکوالۍ سبکونه

**په ټوله کې لیکوالي د سبک له پلوه په دوو برخو ویشو:**

ادبي/هنري لیکوالي ــ علمي لیکوالي

**ادبي/هنري لیکوالي:** ادبي لیکوالي ساده او د ټولو په ژبه کیږي چې له همدې کبله د هر کچ او هرې خوا وګړو پام ځان ته جلبوي.

البته دا په دې معنا نه ده چې په ادبي سبک کې یوازې په ادب او هنر پورې تړلې لیکنې او په علمي هغه کې په علم، تحقیق او تعلیم پورې اړوند لیکنې کیږي، نه!

له سبک نه موخه، د لیکنې د محتوا/موضوع بیانېدلو طرز او طریقه ده، چې ثنګه باید وړاندې شي او لوستونکی ثنګه په اسانه مفهوم او پیغام ترې ترلاسه کړي؟

همدغه د بیان طرز د لیکوال په ذوق او مهارت پورې اړه لري چې په کوم سبک یې وړاندې کوي، صلاحیت یې خپل دی؛ خو یو ټکی باید هېر نشي چې کیسه/ناول، طنز، ادبي ټوټه او... خو هسې هم له ادبي سبک پرته په بل چوکاټ کې سم نه راځي، خبره د نورو لیکنو ده چې آیا په ادبي سبک کې لیکل کېدای شي که نه؟

هو، ولې نشي لیکل کېدای؛ اوس د زیاتره لیکوالانو او استادانو لخوا دا انتخاب معمول شوی او ښه پایله یې هم لرلې ده.

شاید ځینو ته اوس هم د ادبي سبک موضوع یو ثه مبهمه غوندې ښکاره شوې وي، چې ادبي سبک کې لیکوالي یعنې ثه؟ ساده یې درته وایم، ادبي سبک یعنې د عامو په ژبه یا هم په هغې ژبه چې ثنګه د عامو وګړو د خبرو

کولو طرز او ډول دی، همغسې لیکل کیږي؛ خو د یادولو ده چې که لیکنه علمي/تعلیمي وي، نو دغلته بیا د علمي لیکنې اړوند اصول هم باید رعایت شي. لکه: د علمي اصطلاحاتو د ساده کولو/ژباړلو هڅه باید ونشي، په تعلیمي هغو کې د ښه پوهاوي لپاره د جملو او مطالبو تکرار مهم بلل کیږي چې باید په پام کې ونیول شي او په ټوله کې د لیکنې/مقالې تخنیکي او علمي اړخ او همدارنګه د علمي لیکنې اړوند ترتیب ته پکې پام وشي.

**علمي لیکوالي:** د علمي سبک لیکوالي وچه، یومخیزه او جدي ده؛ په دې معنا چې جذابیت پکې کم دی او د لوستونکي توجه ځان ته دومره نشي جلبولی.

د دې لپاره چې په دې اړه سم وپوهېږئ، نو ویلی شم چې د علمي سبک لیکوالي، که څه هم په خپل ډګر کې زیاته دود ده، خو بریالۍ نه ده. هغه په دې معنا، چې د علمي سبک لیکوالان د ادبي سبک لیکوالانو پرتله خپلو لوستونکو ته ارزښت نه ورکوي او یوازې هڅه کوي چې د لوستونکي/مخاطب له درک کولو پرته، د خپلې پوهې انتقال ته یو ډول تحمیلي یا جبري بڼه ورکړي؛ چې دلته شاید د تقلید او ژباړې په برخه کې د نورو ژبو د بیان طرز هم په نوبت سره خپل اغېز ساتلی وي.

نو له همدې امله ویلی شو چې د علمي لیکنو لوستونکي کم دي؛ خو که چېرې علمي موضوعات په ادبي/هنري سبک کې وړاندې شي، نه دا چې بده به نه وي، بلکې اغېز او جذابیت به یې لا زیات وي.

وايي: یو لیکوال چا پوښتی و چې ولې په ادبي سبک لیکل کوي؟ هغه په ځواب کې ورته ویلي ول: «که یې په علمي سبک ولیکم نو د ټولنې یو

ځانګړی قشر به يې ولولي؛ خو ادبي سبک د ټولنې زياته برخه خوښوي او لولي يې».

**په هر حال،** علمي سبک هم ځانته خپل ځای لري او تر ډېره په درسي او علمي کتابونو کې ترې ګټنه کيږي؛ خو کومه موضوع چې په دې اړه ډېره مهمه او د پام وړ ده، هغه د علمي اصطلاحاتو کارول دي چې د کارولو څرنګوالی يې همدلته توضيح کوو.

په علمي کتابونو کې د علومو، ماشينونو، عناصرو او... نومونه او اصطلاحات تر ډېره په همغې ژبه دي چې ويونکو يې يا کشف کړي او يا يې رامنځته کړي دي. له همدې کبله په علمي ليکوالۍ/ژباړه کې د دغو عام شويو اصطلاحاتو او نومونو کارول مهم دي؛ البته که هغه د هرې ژبې اړوند وي، کټ مټ راخيستل يې ځکه اړين دي چې لوستونکي يې يوازې په همغې ژبه پيژني.

د بېلګې په توګه: د (تاريخ) مضمون ته موږ (نېټه) نه شو ليکلی، کمپيوټر ته حساب کوونکی نشو کارولی او تلويزيون، پرنټر، بيولوژي، رياضي، سيروم، ټابليټ، کپسول او نورو ته په خپله ژبه کې نور- نور نومونه ځکه نه شو ورکولای چې دا او دغسې نور نومونه اوس نه يوازې په پښتو ژبه کې پېژندل شوي دي، بلکې په زياتو ژبو کې عام دي، نو د مترادف هغو د موندلو په اړه فکر کول به يې، نه يوازې ځای ونه نيسي، بلکې هم به وخت هسې لګېدلی وي او هم به دغې هڅې مثبته پايله نه وي ورکړې.

__يادښت:__ دا چې انګريزي ژبه تر ټولو شتمنه ژبه ده او د علم او ټکنالوجۍ له پراختيا سره سم، ورځ تر بلې بلها نوي لفظونه او نومونه پکې ور زياتيږي،

چې دا ګړندی پرمختګ یې نه یوازې د شتمنۍ لوی لامل ګرځېدلی، بلکې ټولې ژبې او په تېره کمزورې هغه یې هم تر خپلې اغېزې لاندې راوستي. د همدې لپاره د یادولو وړ بولم، څو تر هغه وخته چې نور نوي انګریزي الفاظ پښتو ژبې ته راننوځي او پکې عام کېږي؛ اړوند مسووله اداره/ارګان، ادبي ټولنې او لیکوالان باید د یو معیار او همغږۍ له مخې په پښتو ژبه کې په رسمي ډول ورته مترادف الفاظ/نومونه رامنځته کړي؛ ګنې د وخت تېرېدا او د ټکنالوجۍ پراخېدا سره به لږ تر لږه نیمه پېړۍ روسته، پښتو ژبې ته یوازې خپل ضمیرونه او فعلونه ور پاتې وي او پاتې الفاظ به یې د ناچارۍ یا بېغورۍ له امله د پردیو ژبو وي؛ چې دا تېروتنه به بیا بیخي نه جبرانېدونکي وي.

## لیکوال

**ښه احساس، ښه فکر او ښه لیکل**

په یو لیکوال کې باید پاسنۍ درېواړه ځانګړنې شتون ولري.

که چېرې د لیکوال لغوي معنا ته وګورو، نو ویلی شو چې که یو څوک د الفبا حروف سره پېیلی شي او د خپل کاروبار یا د کور او نورو برخو معاملې او حسابونه لیکلی شي، نو هغه لیکوال دی. حال دا چې دغسې نه ده، لیکوال هغه څوک دی چې په خپل ذهن کې معنا، مطلب، پیغام او هدف ولري او لکه څنګه چې غواړي، همغسې یې لوستونکو ته د لیکنې له لارې ولېږدوي.

یا په بله ساده وینا یې داسې تعریفولای شو: لیکوال هغه څوک دی چې تر نورو زیات لیکل کوي او له دې لارې خپل فکر او نظر بیانوي.

**دلته یوه بله د پام وړ خبره هم شته** او هغه دا ده چې، ځینې استادان په خپلو علمي څانګو لکه طب، تاریخ، ساینس، انجنیري او... برخو کې کتابونه لیکي، چې دوی ته هم لیکوالان نه شي ویل کېدای؛ ځکه دوی یوازې د خپل مسلک پوه او متخصصان دي او په لیکنیز ډول یې د وړاندې کولو مهارت نه لري. البته دوی هر یو ځانګړی نوم لري. لکه: ډاکټر، تاریخپوه، فزیکپوه، انجنیر، کیمیاپوه یا ساینسپوه او... خو که چېرې په دوی کې داسې څوک وي چې د لیکوالۍ مهارت هم ولري؛ یعنې زیات لیکل کوي او د اړوندو مفاهیمو د سم انعکاس لپاره د خپلو اړوندو لیکنو یا کتابونو د متن املایي او انشأیي چارې پخپله ترسره کوي، بیا نو طبیعي ده چې لیکوال هم دی.

له همدې کبله ويلی شو چې ليکوالي هنر دی او هنر په ښکلې او روانه ليکنه کې له ورايه ښکارېږي.

## ليکوال څوک دی؟

**ليکوال هغه څوک دی** چې احساس يې له نورو بېل وي يا هغه څه چې نور يې نشي محسوسولی، ليکوال يې محسوسوي او بيا يې د قلم، کمپيوټر يا نورې ټکنالوجۍ په مرسته ټولنې ته وړاندې کوي.

هغه څوک چې په ذهن کې تازه او جالبه موضوع نلري، ليکوال نه دی. يا هم يو څوک په ذهن کې ښه موضوعات او مفاهيم را ټوکولی شي؛ خو د بيانولو لپاره يې کلمې او جملې نشي جوړولی، هغه ته هم ليکوال نه شي ويل کېدای.

ليکوال هغه چا ته ويل کيږي چې خلاق او پنځوونکی ذهن لري او په لفظونو کې د خپلو پنځونو راټولولو لپاره له ځانه پوره وي؛ خو البته يوه بله کسبي ځانګړنه هم بايد پکې وي چې انتقاد منونکی او تر ډېره د خبرې اورېدو ظرفيت ولري چې دا کار يې د ليکوالۍ بهير کې د سموالي لپاره خورا ګټور او مهم دی.

راځئ په لاندې لنډ بحث کې پرې وغږېږو!

## هغوی چې ليکل يې دنده ده، په څلورو ډلو يې ويشو:

١- **ليکونکی:** دا هغه څوک دی چې دنده يې يوازې ليکل دي. په دې معنا چې هغه د ليکنې د محتوا او مفهوم د څرنګوالي په اړه په فکر کولو ځان نه ستړی کوي او د الفاظو او جملو د پېيلو لپاره هېڅ ډول

ذوق او لېوالتيا نه لري. مثلاً- په ادارو کې د اداري چارو مامور، عريضه ليکونکی يا قباله او سند ليکونکی او...

**۲- ليکوال ډوله:** دا هغه څوک دی چې په ظاهره ځان ليکوال ښيي؛ خو په واقعيت کې ليکوال نه وي. په دې معنا چې له هرې پردۍ ليکنې يوه - يوه برخه را اخلي او له دې پرته چې په محتوا او پيغام کې يې د خپل فکر په اساس کوم ابتکار او نوښت راولي، محضې يې يو ترېله سره پېيي، ان دا چې د منابعو او سرچينو له ذکر کولو يې هم ډډه کوي.

**۳- ليکوال:** هغه څوک دی چې د ليکنې ټول الفاظ يې د ده د فکر او خيال زېږنده وي. په دې معنا چې يوه نوې خبره يا موضوع د الفاظو په يوه ټولګه کې داسې وړاندې کوي چې پر لوستونکي يا مخاطب باندې اغېز پرې باسي. البته که اړوند سوژه يا موضوع نوې هم نه وي؛ خو د انعکاس زاويه ورته نوې کوي، په ليکنه کې د اغېز او جالبيت موندلو لپاره خپل فکري او تخيلي هنر کاروي او هڅه کوي چې په پوره معقوليت سره اړوند نظريه يا د موضوع تحليل له خپل اړخه بيان کړي؛ يعنې د ليکنې مالکيت د ځان په ګټه ثابت کړي؛ د همدې لپاره خو د (وال) په روستاړي سره تر نورو هغو متفاوت شوی او دا بيخي ښکاره ده چې په پښتو کې د (وال) روستاړی يوازې د مالکيت يا تړاو لپاره کارول کيږي. لکه: پوهنوال، پاسوال، هېوادوال، کليوال، ډګروال، ليکوال او...

**۴- ژباړن:** د ژباړن نوم هم د هغو کسانو په ډله کې راځي چې ليکل کوي؛ خو البته ژباړن ته ليکوال او ليکوال ته ژباړن نشو ويلی؛ ځکه

چې دواړه نومونه د خپلو ځانګړو تعريفونو له مخې، سره متفاوت دي.

ژباړن هغه څوک دی چې د ليکوال د ليکنې پيغام/موضوع د مقصد ژبې ته هغسې اړوي، لکه څنګه چې د مبدأ ژبه (د ليکوال په ليکنه) کې يې بيان شوی دی؛ خو ليکوال بيا هره موضوع، لومړی خپل فکر ته ننباسي او د بيانولو د زوايې يا چوکاټ له موندلو روسته ورته ليکنيزه بڼه ورکوي.

په ټوله کې ليکوال پنځوونکی او ژباړن پراخوونکی يا لېږدونکی بللی شو؛ خو يوه خبره چې مهمه يې بولم، دا ده چې ژباړن بايد ليکوال وي او که ليکوال د ژباړې مهارت ونلري، باک يې نشته.

## څنګه ليکوال شم؟

د دې پوښتنې ځواب په يوه لنډه جمله کې خلاصه کېدلای شي: ليکل کوه! خو دا چې څنګه ليکل وکړئ او څنګه پر اړوندو ځانګړنو ځانونه وپوهوئ، په لنډ ډول پرې رڼا اچول کيږي؛ اما يوه موضوع چې په پام کې نيول يې حتمي دي، د ليکلو په برخه کې د تمرين کولو، زحمت ګاللو او ټولنې ته د خپل استعداد ښودلو اراده ده او ليکوال بايد دغه اراده ولري؛ ګنې نه شي کولای په ټولنه کې ځان ته د ليکوال نوم ورکړي.

په ټوله کې د ليکوال کېدو لپاره لاندې ټکي او لارښوونې تعقيب کړئ:

- د څه په اړه چې ليکنه کوئ، فکر او تمرکز پرې وساتئ.
- چاته ليکنه کوئ؟ ماشومانو، ځوانانو/لويانو، محصلانو، استادانو او که عادي خلکو ته؟ کله چې تاسو خپل مخاطب وموند او د

هغوی د پوهې کچ مو درک کړ، نو پوه شئ چې د ماهر او اغېزناک لیکوال یوه مهمه ځانګړنه همدا ده.

- اوس نو کاغذ/کتابچه را واخلئ یا کمپیوټر ته کښېنئ او د هغې موضوع په اړه لیکل پیل کړئ چې تاسو یې په اړه معلومات راغونډ کړي او غواړئ لیکنه پرې وکړئ.
- اړینه نه ده چې همدا اوس خپلو کلمو او جملو ته هنري ښایست ورکړئ، اوس تاسو یوازې د لیکلو ماموریت پرغاړه لرئ، نه د سمښت او تصحیح! نو هڅه وکړئ چې د جملو او پارګرافونو له تکرارونې او بیاکتنې پرته، خپله لیکنه تر پایه ورسوئ.
- د لیکنې له بشپړېدا روسته تاسو صلاحیت لرئ چې خپله لیکنه په هنري رنګ ښایسته کړئ او ان ژور بدلون پکې راولئ.
- له خپل یو نزدې او پوه ملګري سره یې هم شریکولای شئ، کېدای شي د هغه نظریات زیاته مرسته درسره وکړي.
- په لیکنه کې د نیمګړتیاوو په اړه اندېښنه مه کوئ؛ ځکه چې په انساني پنځونه کې د نیمګړتیاوو شتون یو معمول دی، البته د نیمګړتیاوو د زیاتوالي یا کموالي بحث جلا دی، اما له شتون څخه یې ځکه انکار نشي کېدای چې وخت ګړندی روان دی او د دغه ګړندي حرکت له امله د فکرونو او پوهې چټک بدلون ته په کتو، دا

هیڅ حیرانوونکې نه ده چې په دې برخه کې نیمګړتیاوې ترسترګو شي.

- اوس نو یو بل مهم پړاو دا دی چې خپله لیکنه مو خپره کړئ؛ دا کار نه یوازې ستاسو جرأت او پر لیکوالۍ حاکمیت زیاتوي، بلکې ستاسو په هڅونه کې خورا مرستندوی رول لوبوي.
- **د لیکوال په اړه هري ګولډن[1] د (لیکوالي مور ذاتي نه ده) په نوم یوه مقاله کې لیکي:** «بنیادمان نړۍ ته لیکوالان نه راځي» معنا دا چې یو څوک له پیله لیکوال نه وي، بلکې لیکوال ترې جوړیږي.

اوس که پوښتنه وشي چې څنګه جوړیږي؟ ځواب یې دا دی چې د ښو او پیاوړو لیکوالانو د اثارو لوستلو او د ډېر ډېر لیکلو په پایله کې انسان لیکوال جوړیدلی شي.

- **همدارنګه یاشار کمال[2] د یو کتاب په سریزه کې لیکي:** آیا داسې لیکوال مو لیدلی چې خپل هنر یې په ښوونځي کې ترلاسه کړی وي؟ دا سمه ده چې د لیکوالۍ لپاره لیک لوست مهم دی؛ خو دا حتمي نه ده چې یو څوک دې د لیکوالۍ لپاره لوړې زدکړې

[1] - هري ګولډن/Harry Lewis Golden: امریکایی لیکوال او ورځپانه چلوونکی دی (۱۹۰۲ – ۱۹۸۱ز).

[2] - یاشار کمال/Kemal Sadık Gökçeli: ترکي نامتو لیکوال دی، شاوخوا ۴۰ ناولونه یې لیکلي او لومړني ناول یې نړیوال شهرت ترلاسه کړی (۱۹۲۳- ۲۰۱۵ز).

وکړي. البته که یو څوک لوړې زدکړې ولري او لیکوالي هم کوي، بیا نو د لیکلو محدوده یې خورا پیاوړې او پراخېږي.

**یادښت:** جک لندن، ارنسټ مېلر همینګوې، ویلیم فاکنر او ریچرډ ویلیم رایټ هغه لیکوالان ول چې لوړې زدکړې یې نه درلودې؛ خو دوی له هغو لیکوالانو سره برابر ول چې د پوهنتون په کچ یې زدکړې کړې وې.

لنډه دا چې هېڅ کوم مورذاتي لیکوال شتون نلري او دا ټول د مطالعې او لیکلو د پایلې برکت دی.

- **هنټر ټامپسن[1] د ښو لیکوالانو د اثارو لوستلو په اړه وايي:** لیکل اسان کار نه دی، ان ویلی شو چې خورا ستونزمن کار دی؛ دا ځکه چې د فکر خبره او پیغام، د کاغذ پرمخ راوستل کیږي چې دا راوستل یو لوی هنر غواړي او د دغه هنر راغوړولو لپاره د ښو لیکوالانو کتابونه ولولئ.
- **(نامعلوم) د خیال پالنې/خیال پلوۍ په اړه کاږي:** که څه هم خیال پالنه دومره ښه کار نه دی؛ خو دلته کېدای شي تاسو له خپلو احساساتو او افکارو سره نزدې کړي. خیال د ټولو ښو او بدو لیکنو سرچینه ده.
- **هېنري مېلر وايي:** لیکل خپل لومړیتوب وګرځوئ، نوموړی زیاتوي: یو جدي لیکوال باید خپل هنر او کسب تر هر څه لوړ

[1] - هنټر ټامپسن/Hunter S. Thompson: امریکایی لیکوال دی (۱۹۳۷ – ۲۰۰۵ز).

وګڼي او له هر کار مخکې باید لیکل وکړي. انځورګري، د موسیقۍ اورېدل، تفریح، سینما ته تګ او نور کارونه باید په دویم قدم کې ترسره شي.

- **ګرټروډ ستاین[1] وايي:** په هر ځای کې د خپل خلاقیت منبع یا سرچینه ومومئ. شاید د پنځېدونکو یا خلاقانه لیکلو حس درشي؛ خو که هغه شتون ولري او تاسو یې وړاندې کړئ. دا چې د لیکلو احساس درشي، نو یوه الهام بخښونکې خلاقانه سرچینه پیدا کړئ او په ترتیب سره هغې ته رجوع وکړئ. ستین زیاتوي: د دغه کار لپاره یې په ذهن کې تر ټولو ښه انګېزه هغه وخت ور پیدا شوه چې د موټر چلولو پر مهال یې د سړک پر غاړه غوا ته پام شو. نوموړې په ورځ کې یوازې ۳۰ دقیقې لیکل کول او پاتې نور وخت یې د کروندې شاوخوا ته موټر چلاوه چې کله به یې متفاوته غوا لیدله، هغې ته به ځېر کېد، څو په ذهن کې یې خلاقانه فکرونه او نظرونه ورپیدا شي.
- **مارینا کیګان[2]** هغه ځوانه لیکواله وه چې له ییل پوهنتون څخه تر فارغېدو پنځه ورځې روسته مړه شوه. د هغې روستۍ لیکنه «د یوازیتوب پر وړاندې» چې په ډیلي نیوز کې خپره شوه، په یوه اونۍ کې تر یو میلیون ځله زیاته ولوستل شوه؛ دا ځکه چې هغې

[1]- ګرټروډ ستاین/Gertrude Stein: امریکایي الاصله ناول لیکواله او شاعره ده چې فرانسه کې اوسېدلې (۱۸۷۴ - ۱۹۴۶ز).

[2]- مارینا کېګان/Marina Evelyn Keegan: امریکایي لیکواله ده (۱۹۸۹ – ۲۰۱۲ز).

اړوند موضوعات په دقت سره را اخیستي ول. نوموړې یو ځای کې لیکلي دي: درې کاله وړاندې مې پر یو نوملړ لیکلو پیل وکړ، دا نوملړ لومړی د یادښت په کتابچه کې ځایېد؛ خو هغه ورو ورو پراخ شو او بیا مې نوم هم ورته (د جالبو شیانو نوملړ) غوره کړ. بالاخره د دغه نوملړ د بشپړولو لپاره عادت شوم او لا وهڅېدم چې هره ورځ کار پرې وکړم. په دغه نوملړ کې مې له ټولګي نیولې تر کتابتون، خوبځای، رېلګاډي او هر هغه څه چې راته جالب برېښېدل، پکې ورزیاتول، اوس خبره تر دې رسېدلې چې همغه نوملړ د کتابچې ۳۲ مخونه نیولي دي.

- **مارګرېټ الینور اتووډ**[1] **په ګارډین پاڼه کې لیکلي دي:** د لیکوال کېدو لپاره تاسو یو عمومي لیکدود، د ژبې یو ابتدایي لارښود کتاب او واقعیت سره یو ځای کېدو ته اړتیا لرئ. پر دې خبره باید وپوهیږئ چې هېڅ شی مجاني یا خوشې نه دي. لیکوالي ستاسو کار او کسب دی او په عین وخت کې یو قمار هم. تاسو ته هېڅکله څوک د تقاعد په ډول امتیازات نه درکوي، کېدای شي کله کله ځیني کسان مرسته درسره وکړي؛ خو په ټوله کې باید پر خپلو پښو ودرېږئ؛ ځکه تاسو خو لیکوالۍ ته چا اړ کړي نه

[1]- مارګرېټ الینور اتووډ/ Margaret Elenor Atwood: کاناډایي لیکواله، شاعره او کره کتونکې ده (۱۹۳۹ز – زیږورځ).

یاست، دا چې په خپله لیوالتیا دا کار کوئ، نو هم ورته پابند اوسئ او هم له چا نه شکایت مه کوئ.

- **ګبرېل ګارسیا مارکز[1] له یوې رسنۍ سره په مرکه کې ویلي:** پر هغه څه چې پوهیږئ او هغه تجربې مو چې درته په زړه پورې وي، ویې لیکئ.
- **جوایس کارل اوټس[2] په دې اړه پر خپله ټویټر پاڼه داسې کاږلي:** په خپله خوښه او لېوالتیا لیکنه وکړئ، د همدې ورځې په هیله.
- **زادي سمېت[3] د لیکوالانو لپاره ځینې اصول ټاکلي او په هغو کې توصیه کوي چې:** له خلکو او ډلو لېرې اوسئ؛ ځکه دوی سره په څنګ کې تاسو د خپلو لیکلو سبک او طرز کې پیاوړتیا او لوړتیا نشئ راوستلی. هغه ټینګار کوي: کوم ځای چې د لیکلو لپاره غوره کوئ باید ارام او خلوت ځای وي.
- **ماري فلنري اوکانر[4] وايي:** که د لیکلو لپاره دوه زړي اوسئ او یا هم د لیکلو په اړه په خپل ژوند کې د کافي تجربو د ترلاسي لپاره

[1] - ګبریل ګارسیا مارکز/Gabriel José García Márquez: کولمبیایی لیکوال دی (۱۹۹۷-۲۰۱۴ز).

[2] - جوایس کارل اوټس/Joyce Carol Oates: امریکایی لیکواله او شاعره ده (۱۹۳۸ز – زېږورځ).

[3] - زادي سمېت/Zadie Smith: انګلستانۍ ناول لیکواله ده (۱۹۷۵ز- زېږورځ).

[4] - ماري فلنري اوکانر/Mary Flannery O'Connor: امریکایي لیکواله ده (۱۹۲۵- ۱۹۶۴ز).

ډاډه نه یاست، نو ښه ده چې خپله حافظه لږ وځېرئ. نومو‌ړې په دې اړه زیاتوي: هر چا چې له ماشومتوبه خپل ځان سلامت راویستلی، په کافي اندازه معلومات یې ترلاسه کړي او کولای شي د عمر تر پایه لیکنې وکړي.

- **ویلیم فاکنر[1] په ۱۹۵٦م کال کې د پاریس ریویو سره په مرکه کې ویلي ول:** لیکوالان باید تل له خپل ترسره کړي کار څخه راضي نه وي؛ ځکه ستاسو لیکنه چې باید څومره ښه وي، په اصل کې همغومره نه وي چې تاسو ترې راضي یاست. ښه دا ده چې له نورو سره له بې ځایه پرتلنې لاس واخلئ او هڅه وکړئ چې یوازې له خپل ځان څخه غوره واوسئ.
- **سټېفن کینګ[2] په دې اړه پر دوو ټکیو ټینګار کوي او پاسنۍ ټولې خبرې په همدې دوو ټکیو کې را لنډوي:** زیات ولولئ او زیات ولیکئ. له دې پرته بله لاره نه ده رامعلومه.

اسانه یې درته وایم، یو قلم او کاغذ تل په جېب کې وساتئ، یا هم په خپلو ځیرکو موبایلونو کې (ورډ اپلېکېشن) فعال کړئ؛ ځکه انسان په طبیعي توګه له ډول ډول پېښو سره مخ کیږي، نو د خپل ذوق او پام مطابق پېښې له ځان

[1] - ویلیم فاکنر/William Cuthbert Faulkner: د نوبل جایزې ګټونکی امریکایی ناول لیکوال دی (۱۸۹۷- ۱۹٦۲ز).

[2] - سټېفن کېنګ/Stephen Edwin King: امریکایي لیکوال دی چې تر ۲۰۰ زیات مختلف اثار لري (۱۹۴۷ز – زېږورځ).

سره په کاغذ یا موبایل کې یادښت کولای شئ؛ روسته چې بیا کله هم د کومې پېښې یا سوژې د غځېدا یا پرې د لیکنې هوډ کوئ، نو له فکر او ویرې پرته سمدلاسه وربانديې پیل وکړئ. مهمه نه ده چې تاسو یې څومره غځولی شئ، مهمه دا ده چې د غځېدو اراده یې وکړئ او د دې غځېدا لپاره پر ځان باوري شئ؛ خو شرط باید دا وي چې دا کار مو بیا بیا او ورپسې بیا تکرار کړئ، هله به د لیکوال خطاب درته وشي.

**دا چې ولې باید لیکنه وکړو او لیکل څه ارزښت لري، په لاندې ځانګړنو کې پرې پوهېږو:**

۱. د شته مسایلو او ستونزو بیانول.

۲. نورو ته د خپلو پوهو او مهارتونو لېږدول.

۳. له ځانه د اثر او فکر پرېښودل.

۴. د فکر او عمل سره نږدې کول.

۵. په لیکنه کې د مهارت ترلاسه کول.

٦. په کاري چاپېریال او ټولنه کې نورو ته د خپلو وړتیاوو ښودل او ځان مطرح کول.

۷. د خپلو معلوماتو زیاتول او په ذهن کې یې حک کول.

۸. د خپلو ایډیاوو وده او په دې برخه کې د لا ډېرو څېړنو ترسره کول.

۹. انساني پوهاوي ته وده او پراختیا ورکول.

۱۰. د مسایلو او علومو تلپاتې کول.

## مقاله/لیکنه

د مقالې لغوي معنا خبره یا وینا ده؛ خو په اصطلاحي تعریف کې هغې لیکنې ته وايي چې لیکوال یې د یوې موضوع په اړه د خپل نظر بیانولو په پار لیکي.

یا، مقاله هغې لیکنې ته ویل کیږي چې د یوې ځانګړې موضوع په اړه پکې په متوسط ډول داسې بحث وشي چې اړوند اصول یې په پام کې نیول شوي وي.

مقاله تر ډېره په مجلو، ورځپاڼو، وېب سایټونو، مهالنیو او نورو کې خپرېږي چې اوسمهال یې د لیکوالۍ په ډګر کې بازار خورا تود دی.

### د مقالې عناصر

په ټوله کې د مقالې لیکلو لپاره څلور عناصر ټاکل شوي دي:

۱- سرلیک/عنوان ۲- سریزه/مقدمه ۳- منځپانګه/متن ۴- پایله/نتیجه

خو د علمي/تحقیقي مقالې لپاره بیا دوه عناصر نور هم زیاتیږي، چې هغه لنډیز او منابع دي؛ لنډیز معمولاً له سرلیک روسته او منابع د مقالې پای کې (له پایلې روسته) کارېږي.

د دې لپاره چې د مقالې ټول قالب روښانه شي، نو علمي بېلګه یې تر بحث لاندې نیسو:

۱- **سرلیک/Tittle:** د سرلیک ټاکلو لپاره باید هرومرو دا په پام کې ونیول شي چې سرلیک زرګونه کسان لولي او پخپله مقاله/لیکنه سلګونه کسان؛ په دې معنا چې اکثره کسان یوازې د مقالو، خبرونو او نورو معلوماتو سرلیکونه لولي او ترې تېرېږي؛ خو د دې لپاره چې لوستونکي ستاسو د

لیکنې لوستو ته تم شي او هغه ولولي، نو پکار ده چې جذاب، روښانه، منطقي، په ادبیاتو برابر، محتوا پورې تړلی او له تلوسې ډک عنوان ورته وټاکئ؛ ځکه همدا عنوان دی چې لوستونکی یا د مقالې لوستو ته اړ کوي او یا یې ترې تېروي.

**د عنوان/ټایټل ټاکلو لپاره لاندې اصولو ته پام وکړئ:**

۱- په عنوان کې باید د مقالې اصلي یا مرکزي ټکی او هدف بیان شي.

**۲**-کلیشوي، تکراري او مترادفې کلمې پکې ونه کارول شي.

لکه: د... په اړه څېړنه، ... ته یو کتنه او...

**۳**- باید له ۸- ۴ کلمو لنډ او له ۱۲ کلمو اوږد نه وي.

**لکه:** (اوږد) په ماشومانو کې د ړندوالي لاملونه او خنډونه او په دې اړه د درملنې نوې او اغېزمنې لارې چارې (ناسم).

(متوسط) د ماشومانو د ړندېدو لاملونه او د هغو نوې اغېزمنه درملنه (سم).

(لنډ) د ماشومانو د ړندیدو درملنه (ناسم).

**۴**- د یوې نیمګړې او نامشخصې جملې په بڼه ولیکل شي.

**۵**- د خبري یا استفهامي او پوښتنیزې جملې په بڼه نه وي.

**نوټ:** عنوان پخپله ځانته یو تعریف لري، نوجمله یې هم ځکه نشو بللی چې فاعل، فعل او مفعول پکې نه شته، خو دا چې د

جملې په بڼه يې يادوو، دلته هدف همغه د جملې چوکاټ او کچ دی.

٦- مبهم نه وي.

٧- جذاب او روان وي.

٨- لنډيزونه، فارمولونه او اصطلاحګانې پکې ونه کارول شي.

**٢- لنډيز/Abstract:** د مقالې دا برخه يو ډول تبليغي بڼه لري چې يوازې د لوستونکو پام جلبوي؛ نو داسې بايد وليکل شي چې لوستونکی هرومرو د پاتې مقالې لوستلو ته اړ باسي؛ يعنې لوستونکی له سرليک روسته په لنډيز کې دا موندلی شي چې مقاله د څه په اړه ده؟ د پام وړ ده که نه او...؟

همدارنګه په لنډيز کې د مقالې ټولې برخې لکه: سريزه، هدف، موضوع، طرز او پايله په لنډه توګه بيانيږي، که څه هم اندازه يې د مقالې اوږدوالي پورې اړه لري؛ خو دا چې په معمول ډول بايد (تر ٢٥٠ تورو اوږد نه وي)، دغه ظرفيت او قالب ته په کتو سره يې ټول اړوند مطالب پکې په څه ډول راوړل شي؟ دا کار د ليکوال په مهارت او استعداد پورې تړلی دی؛ خو يو مهم ټکی چې بايد يو ځل بيا يې ياد کړم، دا دی چې لنډيز يوازې په علمي/تحقيقي مقالو او ليکنو کارول کيږي.

**٣- سريزه/Introduction:** د ليکنې کيلي او پيل بلل کيږي چې لوستونکی د اړوندې محتوا په ارزښت او مفهوم پوهوي؛ يعنې موضوع ته د ورننوتو لپاره يې د يوې دروازې يا نخشې په توګه ګڼلی شو.

په سريزه يا مقدمه کې اړونده موضوع په ټوليز يا مختصر ډول بيانيږي او همدارنګه په پای کې يې حللارو ته لنډه اشاره کيږي؛ يا داسې ويلی شو

چې سریزه د لیکوال او لوستونکي ترمنځ د اړیکې یوه وسیله ده، څو په دغه منځ کې د اړوند پیغام انتقال ته د جلب زمینه برابره شي.

**۴- متن:** د مقالې بدنه او منځپانګه ده چې د موضوع هدف، پیغام، څېړنه او ټول مفهوم پکې په مفصل ډول بیانیږي؛ یعنې د متن برخه د مقالې زړه دی او همدلته پر ټاکل شوې موضوع بشپړ بحث ته دوام ورکول کیږي؛ خو کوم ټکی چې په دې برخه کې خورا مهم دی، هغه د اړوندې مسألې/موضوع داسې روښانه کول دي چې کله د مقالې سرلیک، لوستونکی په کومه تمه او تلوسه د هغې لوستلو ته راکاږي، نو پکار ده چې تمې او تلوسې ته یې واقعي ژمنتیا وښودل شي.

**۵- پایله/Conclusion:** د مقالې دا برخه معمولاً روستۍ وي او د اړوندې موضوع ټول بحث پکې راټولیږي؛ نو په دغه ځای کې چې کوم پیغام ته ځای ورکول کیږي، باید د هغو کلمو او جملو له تکرار نه پکې ډډه وشي چې په لنډیز او سریزه کې ذکر شوي وي.

همدارنګه:

- پایله باید لنډه وي.
- اغېزناکه وي.
- په موضوع پورې اړوند وي.
- حللاره پکې روښانه شوې وي.

**٦- سرچینې/References:** له کومو ماخذونو او سرچینو څخه چې د اړوندې مقالې د بشپړولو لپاره ګټنه شوې وي، د مقالې په پای کې یې یادون مهم دی.

**یادښت:** هغه سیاسي، اجتماعي، ادبي او ان علمي مقالې چې اوسمهال خورا معمول دي او لیکوال یې له کومې څېړنې پرته د نیوکې یا خپل نظر او پیغام لېږدولو لپاره لیکي، نو په هغو کې لنډیز او سرچینې په پام کې نه نیول کیږي.

## د مقالې ليکلو شرايط

۱- پر ژبه حاکميت ولرئ.

۲- داسې څه وليکئ، چې هم نوي او هم ورته اړتيا وي، نه تکراري او زړې خبرې.

۳- ښه ځان وپوهوئ او هر څه ته داسې ځير شئ، څو داسې څه پکې ومومئ چې بل څوک يې نشي موندلی.

۴- ليکنه يو ناڅاپه پيل کړئ.

۵- پر کومه موضوع چې ليکنه کوئ، د هغې په اړه بايد کافي معلومات ولرئ.

٦- د ازادۍ فکر او احساس بايد ولرئ، نه چا ته تمه ولرئ او نه د تملق او چاپلوسۍ اخلاقو نه ګټه واخلئ.

۷- په هر حالت کې د کلام عفت وساتئ او د ليکوالۍ له اصولو او موازينو څخه ونه وځئ.

۸- له بيا بيا ليکلو مه ستړي کيږئ.

۹- ليکنښې په پام کې ونيسئ.

۱۰- پر هغه چا چې باور لرئ، هغوی ته د لوستلو لپاره خپله ليکنه ورکړئ، روسته بيا د هغې د څرنګوالي په اړه ترې وپوښتئ.

۱۱- خپل ليدلوری مو د خپل چاپيريال سره پر بلدتيا پياوړی کړئ.

۱۲- کوم څه چې ستاسو د پام او خوښې وړ نه وي، هغه مه ليکئ.

۱۳- د ليکوالانو ناستو او سيمينارونو کې ګډون وکړئ.

۱۴- په لومړيو کې راپور او لنډې ليکنې تجربه کړئ.

۱۵- بېځايه او تکراري جملې مه کاروئ.

۱٦- ريښتينولي او ژمنتيا ولرئ.

۱۷- وليکئ، وليکئ او وليکئ.

## د مقالې ډولونه

مقاله د موضوع له پلوه په زياتو برخو ويشلی شو. لکه: سياسي، علمي، اجتماعي، اقتصادي، ادبي او... خو د چوکاټ/قالب له پلوه په ځلورو ډولونو ويشل شوې ده:

**تحقيقي، تحليلي، مروري او تدويني**

۱- **تحقيقي مقاله:** دا ډول مقاله په ټوله کې پر تحقيق او څېړنه راڅرخي چې يوه موضوع (علمي، تاريخي، ادبي، خبري او...) څېړي او د خپل نظر سربېره د پوهانو او استادانو نظريو ته هم پکې ځای ورکول کيږي.

د تحقيقي مقالو لوستونکي تر ډېره د پوهنتون استادان او محصلان، څېړونکي او کارپوهان وي.

۲- **تحليلي مقاله:** دا ډول مقاله چې نظري هم بلل کيږي، ليکوال د څېړنې له پخوانيو سرچينو څخه په استفاده خپل افکار او ليدلوري غځوي؛ يعنې ځيني دلايل او شواهد ورزياتوي او په يوه نوې بڼه يې بيانوي.

۳- **مروري مقاله:** په دا ډول مقاله کې په لوی کچ د هغو ليکنو تحليل، ارزونه او نقد شامل وي چې مخکې خپرې شوې وي او د يوې مشخصې مسألې د روښانولو لپاره ليکل کيږي.

**۴- تدويني مقاله:** په دا ډول مقاله کې د يوې خاصې موضوع په اړه هغه بېلابېل نظريات او ويناوې راټولېږي چې هغه له وړاندې په کتابونو، مجلو، ويب سايټونو او... کې خپاره شوي وي؛ يعنې په واقعيت کې کوم نوي څه نه ترسره کيږي. د دې او تحليلي مقالې ترمنځ توپير دا دی چې دا په نوې نظريې پورې نه محدودېږي؛ خو په تحليلي هغې کې بيا ابتکار او نوې نظريه شرط ده.

## د مقالې ليکلو په اړه لارښوونې؟

۱- **ټوليزه موضوع:** د يوې مناسبې موضوع ټاکلو لپاره د لازمې انګيزې لرل او د ټولنې اړتياوو ته پاملرنه.

۲- **د ارزښت له پلوه د موضوع څېړل:** په دې برخه کې بايد له ځانه داسې وپوښتئ:

- ټاکلې موضوع څومره ارزښت لري او څومره نوې ده؟
- څېړل او راټولول يې څومره ګټور او څومره زيانمن دي؟
- پر ټاکلې موضوع مقاله ليکل کېدای شي که نه؟
- آيا ستونزې او خنډونه به هم ولري که نه؟ که لري يې څه ډول دي؟ او څومره به د لوستونکو د پام وړ وي؟
- دغو ټولو پوښتنو ته بايد مناسب ځوابونه ولرئ، ايله به مو دا مزل اسانه شي.

۳- **د نظرياتو او مشورو راټولول:** د موضوع په اړه د نظر خاوندانو، پوهانو او په ټوله کې د باتجربه کسانو او يا هم له کتابونو او ويب

سايټونو څخه د معلوماتو، نظرياتو او مشورو راټولول، له هغو نه په اقتباس او د خپل نظر په ورګډولو سره، د موضوع غځول او څېړل خورا اسانه کيږي.

۴- **عمومي مطالعه:** د مقالې ليکلو لپاره عمومي مطالعه بيخي ډېر ارزښت لري چې بايد ليکوال ترې برخمن وي.

**د مقالې ليکلو پر مهال بايد لاندې څو خبرې په پام کې ونيول شي:**

**الف.** مقاله بايد پر يوه موضوع راټوله وي او بلې داسې عمومي موضوع ته پکې ځای ورکول نه دي پکار، چې له اصلي موضوع سره په ټکر کې راشي يا لوستونکي ته د اصلي موضوع په تشخيصولو کې پوښتنې ور پيدا کړي او د دغې ګډوډۍ له کبله د مقالې له لوستلو زړه توری شي.

**ب.** په مقاله کې بايد د وخت تشخيص ته پام وشي. د ليکنې په لړ کې بايد د پېښو تېر، حال او راتلونکي وختونو ته په جدي ډول پام وشي، ګنې د وختونو د ګډوډۍ له امله اصلي مفهوم او پيغام نشي لېږدېدلی.

**ج.** په مقاله کې د پېښې ځای ته هم پام کول خورا مهم دي. د هرې پېښې ځای بايد مشخص شي او د پېښو د تسلسل په لړ کې لکه څنګه چې وختونو ته دقت پکار دی، همدغسې د ځايونو په برخه کې هم دقت مهم او اړين دی.

**د.** تسلسل او د موضوعاتو تړاو د هرې ليکنې مهمه ځانګړنه ده. د يوې مقالې کلمې او جملې بايد د زنځير کړيو په څېر يو تربله په سمه توګه سره تړلې او پېيل شوې وي چې دا کار له مقالې سره د لوستونکي د ساتلو او له سختۍ پرته د مفهوم لېږدولو لپاره خورا مهم او ګټور دی.

## ښه مقاله څنګه لیکلی شئ؟

**۱- زیاتې او مختلفې مقالې ولولئ:** یوه مهمه وینا ده چې وايي: که غواړئ بریالي اوسئ، هغه کارونه تکرار کړئ چې بریالیو خلکو کړي دي؛ نو معنا دا چې د مقالو او لیکنو په لوستلو ستوماني احساس نکړئ.

**۲- یوه څېړنه څو ځله ولولئ:** یوه مقاله وټاکئ او بیا یې څو ځله ولولئ. دا کار هم ستاسو پوهه او معلومات زیاتوي او هم غوځ نظر وړباندې ورکولای شئ. ان تردې چې له همغو موضوعاتو په استفاده، کولای شئ په نوي طرز بله لیکنه وکړئ.

**۳- په ادبي او علمي ناستو کې ګډون وکړئ:** لومړی په څو ناستو کې د مقالې یا لیکنې له وړاندې کولو پرته برخه واخلئ، روسته بیا کولای شئ خپله لیکنه هم ورته وړاندې کړئ، کېدای شي ستاسو لیکنه نقد او په اصطلاح زیاته وټکول شي؛ خو پروا یې مه ساتئ؛ ځکه همدا کار بریالیتوب ته ستاسو د نږدې کېدو یو پړاو دی.

**۴- همدا اوس یوه مقاله ولیکئ:** معنا دا چې د مقالې له نه لیکلو څخه د یوې ډېرې کمزورې مقالې لیکل هم ښه دي؛ په دې کې د شرم او ډار کومه خبره نشته.

**۵- له خپلو ټولګیوالو یا ملګرو مرسته وغواړئ:** چې کله مو یوه مقاله ولیکله، له خپل داسې یو ملګري سره یې شریکه کړئ چې په مقاله لیکلو پوهیږي او له هغه څخه د مقالې نیمګړتیاوو او بشپړتیاوو په اړه لیکلی نظر واخلئ.

**٦- په لومړیو کې په ډېرو جزیاتو پسې مه ګرځئ:** حتمي نه ده چې ستاسو لومړنۍ مقاله دې تر ټولو غوره وي؛ کافي ده چې د مقالې عمومي چوکاټ کې یوه لیکنه وکړئ او ورو ورو بیا خپل مهارت پیاوړی کړئ.

**٧- له بل نه د معلوماتو په ترلاسه کولو مه شرمیږئ:** ان که ستاسو د مهارت په هر پړاو کې وي.

# راپور

**د راپور تعريف:** په لنډ او روښانه ډول د يوې پېښې او د هغې د دلايلو، تجزيې او تحليلونو ليکلو ته راپور وايي.

ياداسې ويلی شو: هغوی چې د يوې موضوع يا پېښې په اړه هېڅ يا پوره معلومات ونلري، ورته د کافي معلوماتو وړاندې کول، راپور بلل کېږي.

د راپور په اړه بېلابېل تعريفونه شوي چې دلته يې هغه مهم را اخلو:

- راپور هغه فن دی چې لوستونکي يا اوريدونکي ته په چټکۍ، بشپړتيا او وضاحت سره پيغام رسوي.
- راپور هغه کړنه ده چې د مطالعې، کتنې او څېړنې په اساس ترسره شوې وي.
- راپور هغه مهارت دی چې له شته ټولو امکاناتو او لوازمو څخه ګټه واخيستل شي.
- راپور هغه شرحه، نقل او روايت دی چې د مخاطب پام ځان ته ور اړوي.

خو د دې لپاره چې يو ليکنيز، غږيز يا انځوريز متن ته راپور ووايو، په هغه کې بايد دغه درې عناصر(مشاهده، مصاحبه او تحقيق) په موثر او متوازن ډول شتون ولري.

**راپور د بېلابېلو برخو لپاره په بېلابېلو ډولونو ليکل کېږي؛** خو هغه ډولونه چې ډېر کارول کېږي او زموږ په روان بحث پورې تړاو مومي، دلته يې رانيسو:

- **اداري/کاري راپور:** دا هغه راپور دی چې معمولاً د اداري کارکوونکي خپلو مشرانو ته د خپلو کړنو په اړه په ليکلي ډول معلومات ورکوي؛ چې په ورځني، اونيز، مياشتني، مهالني او کلني ډول وړاندې کيږي.

  **يا،** د اداري اړوند ځانګه/ځانګې (ځارنه او پلان) د ادارې د ټولو يا ځينو برخو په اړه معلومات او ارقام راټولوي او د راپور په چوکاټ کې يې لوړو مقاماتو، تمويلوونکو او... ته وړاندې کوي. البته دا راپور په مهالني او کلني ډول چمتو کيږي.
- **خبري راپور:** هغه راپور دی چې د خبر بېلابېلو ناڅرګندو او نابشپړو اړخونو د بشپړولو لپاره له تحقيق، مصاحبې او د امکان په وخت کې له مشاهدې روسته ترتيبيږي.

  يا، خبري راپور هغه شتمن يا بشپړ خبر دی چې اړوند او پوره اضافي معلومات ولري. لکه: راديويي راپور، تلويزيوني راپور او يا نور رسنيز راپورونه...
- **تحليلي راپور:** په دغه راپور کې د هر ډول پېښې په اړه خبر، معلومات، نظريات يا څرګندونې او نور اړوند غبرګونونه او اغېزې په تفصيل سره راوړل کيږي.
- **تحقيقي راپور:** د يوې داسې پېښې/موضوع لاملونه، انګيزې او نور دلايل پکې راټوليږي چې په هغو کې د

کتابتون له تحقيق، د کارپوهانو له نظرونو، د معلوماتو راټولولو او د ارقامو له تحليل څخه استفاده شوې وي.

- **توصيفي راپور:** دا راپور تر ډېره د ټولنيزو موضوعاتو، حوادثو او طبيعي پېښو د بيا ويلو لپاره چمتو کيږي. لکه د يوې ټولنې فرهنګ يا د يو شخص خواص او په هغه کې د پام وړ کړنې او اړوند موضوعات په تفصيل سره بيانوي.

## راپور ليکل

**د راپور په ليکلو کې بايد لاندې ځانګړنې رعايت شي:**

- لنډ سرليک غوره کول.
- د مخاطب معلومول.
- ساده ليکل.
- سم (دقيق) ليکل.

## د راپور جوړښت

د راپور جوړښت ته لاندې درې اصلونه په پام کې نيول کيږي:

مقدمه - متن - پای

۱- **مقدمه:** د موضوع په تړاو بايد داسې ترتيب شي چې مخاطب ته روښانه او د پوهېدو وړ وي؛ همدارنګه زړه راکښونکې وي؛ يعنې د لوستونکي يا اورېدونکي د خوښې وړ وي او په هغه کې د راپور لوستو/اورېدو لېوالتيا پيدا کړي.

**۲- متن/بدنه:** په متن کې شمېرې (ارقام)، لاسته راوړنې، تحلیلونه، معلومات او د هغو تفسیر وړاندې کیږي.

**۳- د راپور پای:** د راپور پای کې نتیجه ګیري/پایله، حللارې او وړاندیزونه راوړل کیږي.

**د راپور عناصر**

- څه؟
- څنګه؟
- څه وخت؟
- څه ته (ولې)؟
- چا ته؟
- چېرته؟

که راپور لیکونکی د راپور لیکلو پر مهال پاسنیو پوښتنو ته واقعي او دقیق ځوابونه ولري، نو راپور په سمه توګه بشپړولی شي.

**په راپور کې مهم او د ټینګار ټکي:**

- هره خبره یا موضوع چې مهمه وي، هغې ته باید زیات ځای ورکړ شي.
- په متن کې پر دغو اصطلاحاتو (تر ټولو مهم لامل، اساسي خبره، پوښتنه دا ده، خو کله چې او...) باندې ټینګار، د لوستونکي توجه جلبوي.

**په راپور لیکلو کې منطقي ترتیب ته پام کول:**

- د راپور خاکه باید یو ځل وکتل شي.
- د اصلي او فرعي مطالبو له ځانګړي کولو روسته باید هغه د لومړیتوب او ارزښت له پلوه ترتیب شي.
- د پاراګرافونو په اندازه کې باید تعادل په پام کې ونیول شي.

**د راپور لیکلو پړاوونه:**

۱- **د معلوماتو راټولول:** په دې پړاو کې پوره غور او دقت ته اړتیا ده؛ ځکه چې د معلوماتو په اړه تېروتنه له همدې ځایه سرچینه اخلي.

۲- **د خاکې/طرحې برابرول:** دا د راپور اصلي پایه او بدنه بلل کیږي چې ټول راپور ترې بڼه مومي.

۳- **د راپور لیکلو سبک:** راپور باید روښانه، روان او دقیق وي. همدارنګه علمي اړخونو او رسمي اصولو ته یې په پام، باید له تشریفاتي او اضافي اصطلاحاتو ډډه وشي.

۴- **د کلمو کارولو څرنګوالی:** د راپور د مهموالي یا د خپلې پوهې ښودلو لپاره باید سختې او لهجوي کلمې ونه کارول شي.

۵- **د جملو بڼه:** د جملې اسانولو لپاره باید په هېڅ ډول مهم لفظ یا کلمه د جملې له منځه حذف نشي.

همدارنګه:

- په جمله کې باید اضافي او غیرضروري کلمې ونه کارول شي.
- د ژبې ګرامري اړخ یې په پام کې ونیول شي.

- په یوه جمله کې باید د تړاو/ربط او نسبت توري لکه (د، او، نو، چې، که، له او...) زیات او بې مورده ونه کارول شي.
- د اوږدو جملو او پارګرافونو له کارولو دې ډډه وشي.
- لکه څنګه چې راپور لیکونکی عادي خبرې کوي، همغسې دې راپور هم ولیکلي، هنر او ښایست یې په همدې کې دی.

٦- **پارګراف(بند):** په هر پاراګراف کې یو مطلب یا فکر بیانیږي او پاراګرافونه باید نه دومره لنډ وي چې اړوند مفهوم محدود کړي او نه دومره اوږده وي چې د اضافه او تکراري کلمو یا جملو له کبله اصلي مفهوم پکې ورک شي.

**د پاراګراف ګټې:** د یومخیز کېدا مخه نیسي او همدارنګه:

- د مطالبو په وېش کې مرسته کوي.
- د مطالبو وېش او پکې د فرعي موضوعګانو رامنځته کېدا، د لوستونکي پام ور اړوي.

٧- **د متن پاک لیکون (پاک نویس) او سمښت/اېډېټ:** دا د راپور روستی پړاو دی چې پکې د راپور متن بیا کتل کیږي، بیا لیکل کیږي او تېروتنې یې سمېږي.

## کیـــسه

د کیسې سرچینه تخیل دی او هر هغه څه چې په دغه نوم بنه مومي، د تخیل زېږنده/تخلیق بلل کېږي.

کیسه/داستان یوازې د واقعیتونو او پېښو تصویر او تکرار ته نه وايي، بلکې هغه تخیلي پنځونه ده چې په خپل ذات کې په واقعي بڼه ښودل کېږي او لوستونکي ته دا تصور ورکوي چې ګواکې واقعیت لولي یا یې ویني؛ خو د عام درک له مخې، کیسه یوه داسې هېنداره وبولئ چې پکې د انسان په ژوند پورې اړوند واقعیتونه، بدلونونهاو حوادث (تېر یا راتلونکي) بیا لیدلی شئ او تر هغه وخته چې انسان شتون لري، بدلونونه او حوادث به هم وي؛ چې د همدغو بدلونونو او حوادثو د انځورولو لپاره به د کیسې لړۍ هم روانه وي.

موږ په کیسه کې د واقعیتونو خبره وکړه او معمولاً په واقعیتونو کې ښه او بد شتون لري؛ اوس که چا ته په ذهن کې دا پوښتنه ورګرځي چې ولې باید لیکوال په لیکنه (کیسه) کې د بدو واقعیتونو یادولو ته ارزښت ورکړي؟ نو ځواب یې دا دی.

لومړی دا خبره که څه هم لږ ستوغه ده؛ خو ویل یې اړین دي او هغه دا چې، لیکوال نه مُلا امام دی، نه ناصح او نه هم قاضي دی چې د خپل قلم/هنر له لارې خلکو ته مستقیماً نصیحتونه او لارښوونې وکړي یا هم د خلکو د ښو او بدو ترمنځ قضاوت ته زړه ښه کړي؛ دا سمه ده چې د لیکوال هدف باید د ټولنې اصلاح او سمونه وي؛ خو که چېرې دا سمونه د امام،

ښوونکي او د لوړ مېز تر شا د ناست قاضي له سمونې سره توپیر ونلري، بیا نو باید موقفونه او موقعیتونه یې هم سره یو شان وي.

خبره نه اوږدوو؛ په ټوله کې کیسه د هغو واقعیتونو تصویر دی چې په ټولنه کې پېښ شوي/پېښېږي او یا پېښېدونکي دي؛ نو د دغه تصویر د بیا ښودلو په برخه کې د لیکوال یوازنی مسوولیت او مهارت دا دی چې څومره کولای شي، اړوند واقعیتونه هنري کړي او د همدغه هنر په مرسته ښه او بد په داسې ماهرانه ډول وښيي، چې لوستونکی یې د تفکیک او توپیر لپاره په ځان کې لېوالتیا او ظرفیت احساس کړي.

په اصل کې د ژوند فلسفه یومخیزه نه ده، د تیتو- جیګو او ښو- بدو پېښېدل پکې طبیعي خبره ده او د ژوندانه په دغه رنګارنګ ماحول کې بنیادم هغه وخت د ښو په خوند پوهېږي چې کله د بدو خوند وګوري یا هم ښایست هغه وخت پېژني چې له بدرنګۍ سره مخ شي.

نو هیلمن یم چې زما د دغه ځواب سربېره، تاسو هم د یو شي د ارزښت په اړه له خپل فکر او پوهې کار واخلئ او د ښېګڼو او بدګڼو د بېلېدا لپاره یې پخپله سم قضاوت او قناعت وکړئ.

لیکوال د خپل تخیل په زور کیسه لیکي؛ یعنې کوم څه چې لیکوال پنځوي، د هغو ټولو سرچینه د هغه خپل خیال دی او دغلته لیکوال د خپلو الفاظو په هنري یا جادويي کولو کې د پام وړ آزادي لري.

راځو د کیسې لیکلو ته؛ خو مخکې له دې چې په ټولیز ډول د کیسې لیکل روښانه کړو، لیکوال ته ښه توصیه دا ده چې لومړی باید د ټولنې/وګړو د اړتیا او ذوق له مخې د کیسې موضوع وټاکي او له دغې ټاکنې دومره ډاډمن

وي چې ګونډې ياده موضوع يا سوژه به تر ډېره په مارکېټ/ټولنه کې شته تنده خړوبه کړي.

کيسه مختلف ډولونه لري؛ لکه:ناول، رومان، لنډه کيسه، کيسه ګۍ، د ماشوم کيسه او... خو دلته يوازې د ناول، لنډې کيسې او د ماشوم کيسې ليکلو پر څرنګوالي بحث کوو.

## ناول

**د هغه چا ذهن چې کیسو ته جوړ وي، کولای شي (ناول) ولیکي.**

**ناول** لاتیني کلمه ده او عجیب یا نوي څیز ته وایي، په اصطلاح کې هغه نثري کیسه یا داستان دی چې له لنډې کیسې اوږد او له رومان څخه لنډ وي.

په بل تعریف، ناول هغه نثري کیسه ده چې فرضي او واقعي پیښې پکې داسې انځور شوې وي چې د رښتیا ګمان پرې کېږي.

### د ناول عناصر

صحنه، پلاټ، کرکټرونه، مکالمې، منظر جوړونه، کشمکش، غوټه، تلوسه، اوج، پیغام یا پایله.

خو مخکې له دې چې د ناول پر عناصرو پوه شئ، راځئ لومړی په پړاویز ډول د ناول لیکلو ټول شرایط زده کړئ او په ترتیب سره مخکې لاړ شئ.

### د ناول لیکلو پړاوونه

**لومړی پړاو**

- د یادښت کتابچه (قلم او کاغذ باید درسره وي یا په خپل ځیرک موبایل کې مو د ورډ اپلیکشن فعال ساتئ).

**دویم پړاو**

- خپلې جالبې سوژې، نظرونه او خیالونه مو په کتابچه، کمپیوټر یا موبایل کې یادښت کړئ.
- چې پوه شوئ کافي نظریات او موضوعات مو راټول کړي، څو ځله یې ولولئ.

- بیا یې څو کسانو سره شریک کړئ او مشورې ترې واخلئ.
- روسته بیا هغه سوژې پکې غوره کړئ چې ستاسو په اند تر نورو ښې دي او ګمان کوئ چې نورو هم نه دي غوره کړي.
- څو ورځې روسته یو ځل بیا دا سوژې وګورئ او د مرکزي موضوع لپاره تر ټولو ښه سوژه پکې وټاکئ. البته نورې هغه هم درسره وساتئ، کېدای شي د فرعي پېښنو په توګه ترې کار واخلئ.

**دریم پړاو**

- د ناول موضوع او لنډیز (د ناول د کرکټرونو، ځایونو او نورو په اړه مهم ټکي) ولیکئ.
- کېدای شي په دغه وخت کې نوې ایډیاوې او خیالونه په ذهن کې درشي، هغه هم ولیکئ.
- ځینې داسې وړې پېښې او د فرعي کرکټر توصیف، چې غواړئ په اصلي محتوا پورې یې وتړئ، د یادښت په توګه یې درسره وساتئ.

**څلورم پړاو**

- په یو نوملړ یا جدول کې د ټولو کرکټرونو نومونه، رولونه او ځینې مهم جزیات یې په لنډو ولیکئ، دا به مو د ناول لیکلو پر مهال څو ځله پام جلب کړي.
- د مطالبو سرټکي ترتیب کړئ.

**پنځم پړاو**

- په ځغرده او له زړه سوي پرته خپله اړوند طرحه ایډیټ او سمه کړئ.
- که مو د سمښت/ایډیټ پر مهال طرحه خوښه نه شوه او یوازې ځینې ځایونه مو خوښ شول، نو همغو ته انکشاف ورکړئ او نوې موضوعات او پېښې پکې وپنځوئ.
- د سوژو او پېښو په موندلو او سمولو کې زړه توري نشئ.

**یادښت:** (ورونیکا روت[1] د خپل ناول په اړه په خپل ویبلاګ کې لیکي: کله چې زه په کالج کې وم، د دغه ناول د سوژې موندلو لپاره مې لږ تر لږه ۴۸ ځله هڅه کړې ده).

- تاسو هېڅکله هم د هغې طرحې د غځېدا او پراخېدا لپاره اړ نه یاست چې لومړی مو زحمت پرې ویستلی وي او روسته بیا ستاسو د خوښې وړ نه وي. تر ټولو مهمه دا ده چې که اړوند طرحه ستاسو د خوښې وړ وګرځي، نو د ناول لیکل به هم درته ډاډمن او د پام وړ وي.

**شپږم پړاو**

- اوس د ناول په لیکلو پیل وکړئ.
- ناول په مشخصو برخو وویشئ، په دغه کار سره کولای شئ، هره برخه مو چې په ذهن کې ښه انځور کړې وي او د لیکلو لپاره یې

---

[1] - ورونیکا روت/Veronica Roth: امریکایی ناول لیکواله ده (۱۹۸۸ز- زېږورځ). د نوموړې یاده کیسییزه ټولګه/رومان په درې ټوکو ویشل شوی او لومړی ټوک یې د Divergent په نوم په ۲۰۱۱ز، دویم ټوک یې د Insurgent په نوم په ۲۰۱۲ز او دریم ټوک یې د Allegiant په نوم په ۲۰۱۳ز کال کې چاپ شوي دي.

ښکلي او په زړه پورې الفاظ او طرزونه لرئ، همغه لومړی وليکئ. کېدای شي بدلونونه هم پکې راوړئ؛ خو ورته تلولي کيږئ مه، په ځغرده خپل بدلون ته دوام ورکړئ، دا کار ستاسو ليکنه نوره هم ښايسته کوي.

**مخکې له دې چې نورو پړاوونو ته ورشو، بايد همدلته د ناول پر عناصرو رڼا واچوو:**

- **د ناول عناصر:**

- **پېښې:** پېښې د ناول روحي جسم دی؛ يعنې د پېښو په مرسته يوه کيسه/ناول رامنځته کېدلای، غځېدلای او روانېدلای شي؛ که سپينه يې درته ووايم، نو له پېښو پرته ناشونې ده چې کيسه بڼه ومومي. معمولاً پېښې په دوه ډوله ويشلی شو: (اصلي/عمومي پېښې ــ فرعي پېښې). د يادولو ده چې که پېښې په واقعي او طبيعي بڼه بيان شي، د لوستونکو لپاره به ناول نه يوازې سترې کوونکی نه وي، بلکې د بيا لوستو لپاره به هم زړه ورته تخنيږي.
- **صحنه:** د وخت، ځای او شرايطو (وضعيت) هغه ترکيب دی چې د کرکټر لپاره جوړيږي يا هم کرکټر خپل رول پکې لوبوي. معنا دا چې د هرې پېښې رامنځته کېدل هله منطقي او شونې وي چې ځای او وخت يې مشخص شوي وي او دغه راز هېڅ صحنه له پېښې پرته نشي رامنځته کېدلای. يو مثال ورکوو: (زيات ناروغان راغلي

ول، دوه ساعته په تمه شوم، روسته نوبت راورسېد، ډاکټر ته ورننوتم). دا یوه پېښه ده؛ خو دا چې په ډېره عادي بڼه بیان شوې، نو لوستونکي یا اورېدونکي به دومره خوند ترې وانخلي؛ ځکه دوه ساعته خورا زیات وخت دی او په دومره وخت کې چې هم ناروغان زیات وي او هم محدودیتونه او خنډونه وضع شوي وي، طبعاً جالبې او ان په نرۍ تراژېدۍ لړلې صحنې/پېښې یا تصویرونه دغلته رامنځته کېدلای شي، چې په واقعي توګه یې بیان اړین دی.

- **کرکټران:** هره کیسه اصلي او فرعي کرکټران یا لوبغاړي لري. پکار ده چې د کیسې کرکټران مو په زړه پورې او سم پېژندل شوي وي؛ البته د کرکټرانو په ټاکنه کې باید داسې دقت وشي چې د هر کرکټر عمر، پوهه، اخلاق، باور او نور داخلي خواص د هغه د رول مطابق په پام کې نیول شوي وي. لکه: په پوهنتون کې د استادۍ رول ترسره کولو لپاره باید داسې لوبغاړی/لوبغاړې وټاکل شي چې د پوهې، اکاډمیکو اخلاقو، عمر او نورو اړوندو ځانګړنو څخه برخمن وي. نه دا چې په ناول کې د کرکټر رول شپني وي؛ خو ټول یا ځینې خصوصیات یې استاد ته ورته وي.

- **مکالمه (ډايلاګ):** په ناول يا کيسه کې د کرکټرانو خبرو اترو ته مکالمه ويل کيږي چې بايد لنډه او د کرکټر له سويې، پوهې، عمر، شخصيت او خوی سره سمون ولري. لکه: د کروندګر خبرې بايد د يو ډاکټر له خبرو سره توپير ولري يا د ليني موټرو د موټروان خبرې او د يو ښوونکي خبرې بايد د هغوی د فردي او اجتماعي اخلاقو سره سمون ولري.
- **اړخ (زاويه):** دا نشي کېدای چې ليکوال ته يوازې يو اړخ يا زاويه وټاکل شي، څو هغه دې خپل ناول يا کيسه له همغه يو اړخه بيان کړي؛ دا ځکه چې ليکوال دلته د خپلې علاقې، معلوماتو، لاسرسي او تجربې تابع دی او په هر توګ (شېوه) چې نوموړی حاکم وي، کولای شي همغه اړخ يا زاويه وټاکي.

نور يې هم اسانه درته وايم، اړخ يا زاويه هغه منظر دی چې ليکوال هڅه کوي خپلو لوستونکو ته ترې خپل تخليق ښکاره يا بيان کړي. ناول يا کيسه له درې زاويو/اړخونو څخه بيانېدلای شي: (لومړی شخص، دويم شخص او دريم شخص). لومړی شخص(زه)، دويم شخص (ته) او دريم شخص(هغه). په دې معنا چې د دغه انتخاب په اړه ليکوال ته ښه پته لګيږي، چې کيسه له کوم اړخه يا د چا له خولې ښه نقل کېدلای شي.

مخکې د زوايې د ټاکلو موضوع ياده شوه، شايد ځينو ته پوښتنه ورپيدا شوې وي چې ولې واحده زاويه نشي ټاکل کېدلای يا ولې يوه زاويه تر بلې غوره نه ده؟ په لنډو ټکيو کې يې ځواب دا دی:

درېواړه اړخونه يا زاويې هم ښېګڼې او هم بدګڼې لري، نو د دغو مساوي خصوصياتو له امله يې، مناسبه نه ده چې د ليکوال علاقې او تجربې ته له توجه پرته، هغه وټاکل شي.

**د يادو درېواړو ډولونو ښېګڼې او بدګڼې په لاندې ډول دي:**

لومړی شخص: ښېګڼه - ليکوال په ښه توګه له لوستونکي سره په اړيکه کې کېږي.

بدګڼه- ليکوال اړ دی چې يوازې له يو اړخ يا منظر څخه کيسه بيان کړي.

دويم شخص:

ښېګڼه- لوستونکی ډېر ژر په کيسه کې ځان ليدلای شي او تر پايه پکې ځان ښکېل ګڼي.

بدګڼه- له دې زاويې څخه په اغېزمن ډول د کيسې/ناول ښودل تر نورو زاويو سخت دي.

درېيم شخص:

ښېګڼه- د لیکوال پر مخ د پراخ منظر یا لید مخه خلاصه ده؛ یعنې لیکوال دلته د کیسې/ناول د ټولو اشخاصو، پېښو او نورو کوایفو په اړه بشپړ پوهاوی لري.
بدګڼه – له لوستونکي سره د اړیکې ټینګېدل ستونزمن کیږي.

- **پلاټ:** له مخکې نه د پېښو منطقي تعقیب او ترتیب دی؛ یعنې پلاټ په کیسه کې پېښې ترتیبوي او د علت او معلول د اړیکې په اساس په منطقي ډول بڼه مومي. دا عنصر د کیسې زړه هم بللی شو چې د کیسې د ټولو پېښو د تړاو او رابطې منلو لپاره لوستونکی قانع کوي. په دې اړه یو بهرني لیکوال په زړه پورې مثال وړاندې کړی، هغه وایي: په داستان کې پېښې د تسبېح د دانو په شان دي؛ خو دا دانې تر هغه وخته تسبېح نشي بلل کېدای، چې ترمنځ یې د اړیکې یوه وسیله رامنځته نشي؛ نو د یوځای کولو او د تسبېح په بڼه یې د رامنځته کولو لپاره تار ته اړتیا ده او دغه تار چې یادې دانې سره یوځای کوي، بیخي همدغه پلاټ ته ورته دی چې په داستان کې پېښې یو تربله تړي.

البته د منطقي تړاو او ترتیب موضوع هم په یو لنډ مثال کې داسې روښانه کېدای شي: (د موټر ټایر پنچر شو،

همله‌ته پر سرک مو شپه شوه) سمه ده چې د دغو دوو پېښو ترمنځ د علت او معلول د تړاو موضوع مطرح شوې؛ خو لکه څنګه چې په منطقي ډول باید مطرح شوې وای، هغسې نه ده شوې. د دویمې پېښې د رامنځ‌ته کېدو لپاره باید لوستونکی محضې دومره قانع کړ شي چې په موټر کې شټپني ټایر نه و او نه بل موټر ورته پیدا شو؛ نو ځکه یې شپه شوه. په نامناسب ځای کې په ناڅاپي او ناپامي توګه د شپې تېرول خامخا پوښتنې ربړوي او باید ځواب شي.

- **کشمکش:** د دوو یا څو ښکېلو اړخونو تقابل ته کشمکش ویل کېږي. په کیسه کې کشمکش په حرکت پورې تړلی وي، حرکت چې څومره ګړندی وي، کشمکش هم ګړندی کېږي او کیسه جالبوي. د کشمکش ښېګڼه دا ده چې لوستونکی د لوستلو پرمهال په پېښه کې دومره ډوبیږي چې ناپامه ځان پکې ګډ بولي او تلوسه یې دومره زیاته شي چې نشي کولای پېښه په نیمه کې پرېږدي، تر هغه چې د (اوس به څه کېږي) پوښتنې ته یې پکې ځواب نه وي موندلی. البته د یادولو ده چې لیکوال باید د ځواب په مطرح کولو کې هرومرو دا ټکی په پام کې ونیسي چې کوم ځواب/ځوابونه وړاندې کوي، هغه باید د لوستونکي د توقع خلاف وي؛

یعنې کوم څه چې د لوستونکي په ذهن کې په معمول ډول له مخکې اټکل شوي وي، هغه باید مطرح نشي.

د کشمکش عمده دنده همدا ده چې لوستونکی/اورېدونکی هرومرو له دغو پوښتنو سره مخ کوي: (اوس به څه کېږي؟ ژوندی به راوځي کنه؟ نن مې د زړه خبره ورته کوم، خدایزده څه به راپېښ شي؟ او...)

له پوښتنو ورهاخوا موږ مخکې د تقابل او تضاد خبره وکړه او معمولاً دا حالت په کیسه کې خورا خوندور طبیعي تصویر زېږوي؛ یعنې لیکوال هغه وخت د لوستونکي تلوسه راوپارولی شي چې په پېښه کې دوه لوري په تضاد کې پرېږدي. د بېلګې په توګه: انسان له طبیعت سره په تضاد یا تقابل کې؛ لکه (یو سړی د شپې لخوا ډارېږي؛ خو نن شپه یې د اوبو نوبت دی او له ناچارۍ یې باید ځکه پخپله ولګوي، چې پلار یې په سفر تللی دی)، دلته د کرکټر د ډار او د را روانې شپې ترمنځ کشمکش رامنځته کېږي، نو ترڅو چې شپه سبا کېږي، یا د اوبو نوبت ختمېږي، د کیسې جذابیت او راکښون خورا په زور کې دی.

یا انسان له ټولنې سره په تضاد او تقابل کې؛ لکه (یو کلیوال حج ته ځي، خو په ښار کې داسې مهال د پولیسو

لخوا نيول کيږي، چې نيم ساعت روسته بايد هوايي ډګر ته ځان ورسوي؛ ځکه چې هلته الوتکه نه ورته په تمه کيږي.

دغه راز د کشمکش نور ډولونه هم شته؛ لکه انسان له انسان سره، انسان له خپل ځان سره، ټولنه له ټولنې سره او...

- **تلوسه:** که څه هم اکثره ليکوالانو د ناول په چوکاټ کې د دغه عنصر دومره يادون نه دی کړی؛ خو زه وايم چې له تلوسې پرته ناول داسې دی، لکه بې غوړيو قتغ؛ يعنې که په ټوله کې داسې ووايم **چې** د تلوسې عمده هدف دا دی، څو لوستونکی په ناول يا کيسه کې تر پايه پاتې شي او د دغه پاښت لپاره ليکوال د پېښو يا اړخونو ترمنځ کشمکش رامنځته کوي يا په پېښه کې د شته غوټې سپړلو او يا هم د ستونزې حل کولو ته ژر زړه نه ښه کوي، معنا دا چې لوستونکی له کيسې/ناول يا يې له پېښو سره مستقيماً په اړيکه کې پاتې کيږي او په معمول ډول د (اوس به څه کيږي؟ يا ورته نورو پوښتنو) لپاره تر هغه ځواب نشي ترلاسه کولی، څو د پېښې غوټه نه وي سپړل شوي. د يادولو ده چې ځينې ماهر ليکوالان د غوټې په سپړلو سره هم د تلوسې مالګه زياتوي؛ يعنې کله چې يوه فرعي غوټه سپړي، د هيجان او تلوسې تسلسل يې

دومره پیاوړی کړی وي، چې لوستونکی له لومړنۍ پېښې ځخه بلې ته د تلو یا لېږد درک هم نشي کولای.

- **اوج:** دا هغه ځای دی چې ګوانښ، ستونزه، خوښي او... پکې جدي، روستي او سخت حالت ته رسیږي او د لوستونکي زړه تر ستوني راولي؛ یعنې هیجان یې زیاتوي.
- **ټون/لحن:** دا یوه طبیعي خبره ده چې په کیسه یا ناول کې له یو نه زیات کرکټرونه شتون لري او هرومرو به یې د خبرو لحن او طرز هم سره متفاوت وي، نو د دغه اصل د رعایت لپاره لیکوال اړ دی چې په کیسه کې د لحن موضوع هم په پام کې ونیسي او په مکالمه کې د هر کرکټر لپاره د خبرو جلا طرز مشخص او تر پایه یې همغسې وځاري.
- **وبدن:** دا شاید د لوستونکو لپاره نوې اصطلاح وي؛ خو حیرانېږئ مه، وبدن/بافت د کیسې یا ناول د ټولو عناصرو منطقي اوډون او تعقیب ته وایي او په ټوله کې د کیسې داخلي تړاو او اړیکې تضمینوي، په تېره د پېښو د تړاو او تعقیب په برخه کې؛ البته که ورته پام ونشي، نو لیکوال نشي کولای لوستونکي ته دا قناعت ورکړي چې ګواکې ټولې اړوندې پېښې له یوې پېښې یا موضوع

څخه سرچینه اخلي او له دې امله به لوستونکی د ناول یا کیسې په پای کې هیڅ پیغام ترلاسه نشي کړای.

- **پای:** ناول/کیسه باید هغسې پای ونه مومي، لکه څنګه چې لوستونکي له مخکې ورته اټکل کړی وي؛ یعنې د ناول له پای څخه مخکې جملو/پیښو کې باید لوستونکی داسې کوم څه ونه ویني چې هغه ته دې د پای په اړه د پوهېدو نقل ورکړي. خو اصلي پوښتنه بله ده، په کیسه یا ناول کې د (پای) موقعیت او منطق څه ډول دی؟

د دې پوښتنې ځواب مهم دی؛ ځکه چې اکثره ناولونه یا کیسې د بېځایه او غیرمنطقي پای له کبله بېخونده او کمزوري وي. زه نه غواړم خبره اوږده کړم یا د نیوکې په توګه د چا ناول د بېلګې په ډول راواخلم؛ خو که یې په یو تخنیکي/هندسي مثال کې درته روښانه کړم، بده به نه وي.

د کیسې (پیل او پای) دواړه هغه لازم او ملزوم مرکزونه/نقطې دي، چې له مخې یې یوه کړۍ/دایره بڼه مومي؛ په دې معنا چې د کیسې پای د هغې په پیل پورې تړلی دی او دایره هغه وخت رامنځته کېدلای شي چې روستۍ نقطه له لومړۍ نقطې سره ونښلي او بالاخره یوه دایره جوړه کړي. له دې پرته که دویمه نقطه په بل هر

ځای کې بنه وومومي، ښکاره ده چې د دايرې تعريف ته زيان رسوي. نو د ناول پای د هغه له پيل سره تړلی دی او لوستونکی به هله له ناول نه خوند واخلي چې پای يې په پيل پورې منطقي تړاو ولري؛ يعنې هغه مرکزي موضوع/پېښه چې ناول وربانديې پيل شوی او بايد پای ومومي، نو دغه پای هغه وخت منطقي او سم بلل کېدای شي چې ناول په فرعي پېښه يا موضوع باندې بشپړ نشي. البته يو بل ټکی د يادولو دی چې کله مو د ناول دايره راټوله کړه او روستۍ نقطه مو هم کېښوده، له هغې روسته بيا هر ډول جزيات د ټول حيثيت پيکه کوي، چې بايد ډېره ترې وشي.

- **ژبه:** د ناول ژبه چې څومره عادي او روانه وي، هومره د لوستونکي لپاره په زړه پورې کيږي؛ يعنې کله چې کيسه يا ناول په روانه، ساده، عامه او د عادي خبرو په شان ليکل شوی وي، که په ځينو نورو برخو کې ځينې نيمګرتياوې هم ولري، د دغه خصوصيت له امله به د بريا له امتياز څخه بې برخې پاتې نه شي.

يو ځل بيا د يادولو وړ بولم چې د ناول يا کيسې په ژبه کې بايد د ربط يا نسبتي تورو لکه (او، چې، که، نو...) له بې مورده کارولو ډډه وشي.

**اووم پړاو**

- د ناول له ټاپیولو روسته هغه په څو ځایونو کې خوندي کړئ. تېروتنې، زیاتې او بې ځایه خبرې او کلمې یې هم ترې په دقت سره لېرې کړئ.
- له څو ورځو دمې روسته یې بیا راواخلئ او څو ځله یې ولولئ. کېدای شي ځینې نوې خبرې او بدلونونه پکې رامنځته کړئ.
- البته د سمښت پر مهال زړه مه ورباندې خوږوئ، ناسمې کلمې او جملې ترې په جرأت سره لېرې کړئ، ان که هغه فرعي کرکټر او یا کومه فرعي پېښه هم وي. دغه راز که کوم نوی کرکټر یا پېښه ستاسو ناول ښایسته کولای شي، له کومې وېرې پرته یې ور زیاتولی شئ.

## د ناول لیکلو په اړه د ځینو نړیوالو لیکوالانو لارښوونې

**ریچرډ فورډ**[1]: د خپل ناول بشپړولو او د اړوندو تخیلونو د پېیلو لپاره د رخصتۍ یوه ځانګړې ورځ یا یو ځانګړی وخت په پام کې ونیسئ، بیا وګورئ چې څنګه یې په اغېزناکو الفاظو سمبالولی شئ.

**فیلیپ هنشر**[2]: د خپل چاپېریال د خلکو کړو وړو ته پام وکړئ. د هغوی ځای او خبرو ته مه ګورئ. یو لیکوال د نورو ذهن ته ورننوځي او بېغمه خپل لیکل پیلوي؛ خو د دغو کسانو احتمالي چلند باید په مختلفو شرایطو کې ښه وڅېړل شي. د ناول لیکل دومره هم اسانه کار نه دی چې قلم او کتابچه درسره وي، په کور کې ناست اوسې او ویې لیکې، نه! لیکوال باید د ټولنې نفس ته وردننه شي او په کوڅو او نورو ځایونو کې د خلکو د ژوند تصویرونه ځان سره واخلي.

**کترین هیوز**[3]: د غیر داستاني او ژوندلیک لیکلو لپاره ډېر تحقیق ته اړتیا لرئ، ښه ده چې له تحقیق روسته د لیکنې په جسم کې روح پو کړئ. باید تاریخي ناول مو داسې وکاږئ چې ګواکې همدا اوس پېښېږي، د لیکلو لپاره تلوار مه کوئ، ښه ده چې لږ صبر ولرئ، څو ستاسو تخیل وده وکړي، ځان مو پر یو ځانګړي وخت پورې مه محدودوئ، د کتاب لیکل به له څه مودې روسته د کلمو ښه تصویر در وښیي.

---

[1]- ریچرډ فورډ/Richard Ford: امریکایي ناول لیکوال دی (۱۹۴۴ز- زېږورځ).

[2]- فلېپ هنشر: انګریز ناول لیکوال دی (۱۹٦٥ز- زېږورځ).

[3]- کترین هیوز/Kathryn Hughes: انګریز ناول لیکوال دی (۱۹٥۹ز- زېږورځ).

**مایکل شیبان**[۱]: هغه ناول چې تاسو یې له مودو راهیسې یوازې بوخت ساتلي یاست، ورسره خیانت وکړئ او نوی پیل کړئ.

**روز ټریمین**[۲]: ټول د سپټمبر میاشتې په پاراډاکس اخته کیږي، کله چې هوا سړیږي او د مني موسم پیلیږي، ټولو ته د لیکوالۍ احساس ورپیدا شي. باید همدغه شیبه پیدا کړئ، د خپل ذهن شنو ریښو ته پام وکړئ، که داسې ونکړئ، نو تر کریسمس پورې به مو احساس له منځه لاړ شي. خپل ذهن ورروزئ او لا ښه ده چې له خلاقو ملګرو سره ناسته پاسته ولرئ، څو یو څه نوې خبرې او نظریات ترې لاسته راوړئ.

**ویلیم بوایډ**[۳]: په میاشت کې هرومرو یو ځل ځینې کسان راته راځي او وایي چې د یو کتاب لیکلو لپاره ډیره غوره سوژه لري؛ خو چې کله ترې د کتاب د پای په اړه وپوښتم، ځواب نلري. له همدې کبله زه وایم چې که د ناول د پای په اړه پوه واست، خپل ناول په اسانۍ سره لیکلی شئ؛ اما که له دې پرته مو په ناول لیکلو پیل وکړ، ډېره به درته سخته شي؛ ځکه خو په نړۍ کې ډیر ناتمامه ناولونه پراته دي.

**ډوریس لسینګ**[٤]: لیکوالي سخت کار دی او د دې لپاره چې لیکوال شئ، باید د خپل ژوند (ان خصوصي ژوند) یوه لویه برخه ورته ځانګړې کړئ.

---

[۱]- مایکل شیبان/micael chabon: امریکایی لیکوال دی (۱۹۶۳ز- زېږورځ).

[۲]- روز ټریمین/Rose Tremain: انګریز ناول لیکوال دی (۱۹۴۳ز- زېږورځ).

[۳]- ویلیم بوایډ/William Boyd: انګریز لیکوال دی (۱۹۵۲ز- زېږورځ).

[٤]- ډوریس مې لېسېنګ/Doris May Lessing انګریزه لیکواله ده (۱۹۱۹- ۲۰۱۳ز).

**انتوان چخوف**[1]**:** ما ته مه وایه چې سپوږمۍ رڼا کوي، باید په ماته ښیښه کې د لمر رڼا راوښیې.

**پاولو کویلو**[2]**:** اوښکې هغه توري دي چې یوازې لیکلو ته په تمه دي.

[1] - انتوان چخوف/Анто́н Па́влович Че́хов: روسی لیکوال دی (۱۸۶۰- ۱۹۰۴ز).

[2] - پاولو کوېلو/Paulo Coelho: معاصر برازیلی لیکوال دی (۱۹۴۷ز - زیږورځ).

## لنډه کیسه

لنډه کیسه چې په نولسمه پېړۍ کې رامنځته شوه، د کیسې یا داستان هغه ډول دی چې په حجم کې له ناول څخه کوچنۍ ده او یوازې د ژوند یوه وړه برخه یا یوه پېښه انځوروي.

حال دا چې په ناول/رومان کې د ژوند مختلفې او زیاتې پېښې راوړل کیږي او د کیسې د اصلي لوبغاړي یا کرکټر د ژوند یو اوږد پړاو پکې تعقیبیږي.

د بېلګې په ډول: ناول داسې دی لکه د یو بڼ دروازه، تاسو کولای شئ د دروازې له لارې بڼ ته دننه شئ او هر څه جلا جلا ووینئ؛ خو لنډه کیسه بیا داسې وبولئ لکه د بڼ په دروازه یا دیوال کې یوه وړه سوره، چې د بڼ یوازې یوه محدوده برخه ترې لیدلای شئ.

خو ولې لنډه کیسه؟

د دې لپاره چې اوس د انساني ژوند شرایط خورا بدل شوي او انسان دومره زیات بوخت شوی چې د اوږدو داستانونو/ناولونو لوستلو لپاره کافي مسلسل وخت نشي موندلی؛ له همدې کبله انسان اړ شوی چې له شرایطو سره سم په خپله ادبي/هنري تګلاره کې هم بدلون راولي او د دغه بدلون یوه نمونه یې همدا د لنډې کیسې رامنځته کول دي چې اوس هر څوک کولای شي په کم وخت کې د داستان لوستلو تنده پرې ماته کړي.

### د لنډې کیسې ځانګړنې

- لنډه وي. (البته دا لنډون یې مشخص نه دی؛ د اوسني معمول له مخې شاید پنځه تر پنځلس دقیقو وخت ونیسي؛ خو عامه او

پخوانۍ تيوري بيا وايي چې زيات حد يې دوه زره کلمې دی او تر دوو ساعتو پورې وخت نيسي).

- د اغېز او تأثر يووالی ولري.
- مرکزي يا اصلي پېښه يې يوه وي؛ خو فرعي هغه يې له دوو تر څلورو هم کيدلی شي.
- د اضافه کلمو، جملو او ان پارګراف ځايولو ظرفيت نلري. (هېڅ اړتيا نشته چې ليکوال د لوستونکي د پوهولو لپاره توضيح ته زړه ښه کړي).
- مرکزي کرکټر يا ستوری يې يو او فرعي کرکټران يې هم محدود وي. (دا کار کيسې ته جذابيت ورکوي او لوستونکي سره د پيغام او مفهوم په درک کې مرسته کوي).
- هيجان او اغېز ولري.
- پای يې جذابيت او راکښون ولري.

## لنډه کيسه ځنګه وليکو؟

ليکوال کولای شي د ښې کيسې په ليکلو سره ټولنې ته خپل پيغام هغسې ورسوي، لکه څنګه يې چې غواړي. د همدې لپاره بايد د پاسنيو ځانګړنو په پام کې نيولو سربېره، له هغو عناصرو هم ګټنه وشي، کوم چې د ناول په بحث کې يې يادون وشو؛ خو دا چې په حرفوي ډول هم پرمخ لاړ شئ، نو د لاندې لارښوونو تعقيب درته خورا مهم دی:

❖ د مختلفو سبکونو او فرهنګونو کيسې مو بايد لوستې وي.

- مخکې له دې چې د کیسې په لیکلو پیل وکړئ، خامخا به مو سوژه ورته ځانګړې کړې وي او هغه هم نوې او د پام وړ سوژه.
- کیسه له هغه ځایه پیل کړئ، له کومه چې تاسو ته په زړه پورې وي. که چیرې تاسو په دغه انتخاب کې زړه نازړه یاست، بیا نو د روستۍ تجربې له مخې، کیسه په پېښه، ژوندي تصویر یا مکالمه پیل کړئ، دا به د لوستونکو لپاره خورا جالبه او د پام وړ وي.
- د لید زاویه یا د بیان اړخ یې د لیکوال علاقې، معلوماتو او تجربې پورې اړه لري، په دې معنا چې د دغه انتخاب په اړه لیکوال ته ښه پته لګیږي، چې له کوم اړخه یا د چا له خولې یې نقل کړي. د (زه، ته او که د هغه) له اړخه؟
- په روانه او ساده ژبه یې ولیکئ.
- لنډې او ساده جملې وکاروئ، په سختو او لهجوي کلمو پسې مه ګرځئ. د ربط او نسبتي تورو/کلمو پر ځای له لیکنښو (، .) کار واخلئ؛ یعنې د (او، نو، چې، خو، نو او...) کلمو کارولو سره د کیسې خپل طبیعي حالت بې خونده یا له منځه ځي. په یو مثال کې یې روښانه کوو:

(نجونې یوې خوا ته کېناستې، چا ور ونه کتل، ماریا ګیلاس ته لاس ور وغځاوه، تر نیمایي یې له تورو چایو ډک کړ، ولاړه شوه، ګیلاس یې د باندې تش کړ، بېرته په خپل ځای کېناسته، چایجوشه یې ورپورته کړه).

پاسنۍ لنډې جملې سره له دې چې لنډې دي، رواني او نه ستړې کوونکي هم دي؛ خو کېداى شي د يو نوي ليکوال لپاره يو څه عجيبه ښکاره شي او د دغه درک له مخې يې د دې امکان شته چې د يادو جملو ترمنځ د تړاو په موخه د ربط يا نسبتي تورو کارولو ته زړه ښه کړي چې بيا به نو په لوى لاس د کيسې طبيعي او رواني ژبې ته زيان واړوي. په داسې حال کې چې پاسنۍ جملې د عادي او طبيعي ژبې په توګه کارېدل شوي او د هيڅ ډول تصنع هڅه نه ده شوې.

- ډايلاګ/مکالمې بايد لنډې او د کرکټر له شخصيت سره مناسبت ولري، ګنې د کيسې ټول جذابيت او د مکالمې طبيعي حالت له منځه ځي؛ يعنې که چيرې کرکټر کروندګر وي، نو بايد د هغه د پوهې او درک سره سمې خبرې ورته وټاکل شي يا که کرکټر استاد يا لوستى وي، نو هم بايد د هغه پوهې او درک ته په کتو برابر ډايلاګ انتخاب شي.
- جزياتو ته مه ننوځئ او يوازې اړين مطالب بيان کړئ، دا ويره مه کوئ چې ګوندې لوستونکى به ستاسو پيغام ترلاسه نشي کړاى.
- خوږې او ترخې فرعي پېښې په منطقي ترتيب سره وتړئ او لنډ کشمکش ته پکې ځاى ورکړئ، که چېرې کشمکش اوږد شي، د کيسې اوږدېدو احتمال هم شته.

- د غوټې سپړلو ته لومړی مخاطب چمتو کړئ او د لوستونکي د هیجان له اوج سره سم یې وسپړئ؛ معنا دا چې په ناڅاپي ډول د غوټې سپړل، د کیسې منطق زیانمنوي.

د یادولو ده چې په کیسه کې یوه عمومي غوټه وي او بله فرعي، البته فرعي هغه یې شاید له یوې زیاتې هم وي؛ خو عمومي غوټه باید یوازې په پای کې وسپړل شي؛ ځکه چې له پای نه مخکې د عمومي غوټې سپړل، د کیسې د پای زیانمولو په معنا دي او له هغې روسته کرښې/پېښې منطق نلري.

- هره فرعي پېښه د یو منطقي دلیل له مخې داسې رامنځته کړئ چې د کیسې اصلي موضوع سره هراړخیز تړاو ولري.
- په ټوله کې کیسه باید دومره خوږه او له تلوسې ډکه وي چې لوستونکی یې د پای پرځای دوام ته خوښ وي.
- د کیسې پای ته د نزدې کیدو سره سم، فضا داسې برابره کړئ چې لوستونکی نه یوازې د کیسې جذاب پای ته د رسیدو لپاره د تلوسې شدت کابو نشي کړای، بلکې له ځان سره د دغې فضا د اوږدیدا هیله ولري. دغه راز د کیسې پای باید د لوستونکي د تمې خلاف وي او کوم څه چې په اړه یې اټکل کوي، هغسې ونه وځي؛ ځکه چې د صنعت او هنر ترمنځ باید همدا توپیر پاېښت ومومي.

## د ماشوم لپاره کيسه

د کيسې، ناول او لنډې کيسې په اړه مو روښانه بحث وکړ او تر ډېره مو هغه اړينې برخې مطرح کړې چې هرومرو د يو ليکوال لپاره مهمې او د پام وړ دي؛ خو زموږ د دغه بحث يو مهم اړخ چې لا هم ورته هېڅ اشاره نه ده شوې، د کمکي/ماشوم کيسه ده، چې ولې او څنګه ليکل کيږي؟

همدغو دوو پوښتنو ته د ځواب ويلو په موخه خپل بحث غځوو.

د ماشوم کيسه، د ليکوالۍ هغه ژانر دی چې لوستونکي يې يوازې ماشومان دي، په دې معنا چې ماشوم د انساني نړۍ ابتدايي او جلا قشر دی، نو مهمه ده چې د دغه قشر د درک او پوهې په کچ او د دوی د ادراکي، تخيلي او فکري پياوړتيا لپاره، تر نورو بېل کتابونه او کيسې وليکل شي. د ماشوم ژبه، فکر، درک او شخصيت د لويانو پرتله په ټيټ کچ کې دي، نو ښه دا ده چې ليکوال بايد لومړی خپل ځان د ماشوم پرځای ومومي او بيا ورته کتاب وليکي.

### د ماشوم لپاره د کيسې ليکلو ارزښت څه دی؟

- ماشوم د لوستلو او ليکلو ژبې سره اشنا کيږي او د لوست قوه يې پياوړتيا مومي.
- د ماشوم د شخصيت په روزنه او پالنه کې مهم رول لري او همدارنګه فکري او تخيلي استعداد يې لوړيږي.
- ماشوم له همدا اوسه مطالعې سره بلدتيا پيدا کوي او ان عادت يې ګرځي.

- په ټوله کې مهمه دا ده چې د ماشوم په ژبه وي او ماشوم خپل ځان ورسره پردی نه احساسوي.

## د ماشوم لپاره په کیسه لیکلو کې کومو ټکیو ته پام وشي؟

په ټوله کې د کیسې پر ځانګړنو، عناصرو او د لیکلو پر ډول یې غږېدلي یوو، راځئ اوس د ماشومانو د کیسې لیکلو طرز روښانه کړو او کوم مهم ټکي چې باید پکې رعایت شي، پر هغو بحث وکړو. خو له دغه بحث مخکې پکار ده چې دوو مهمو ټکیو ته اشاره وکړم: لومړی- د دا ډول کیسې لیکوال باید دا ومني چې یو ډیر لوی کار ته یې ملا تړلې. دویم دا چې د یوې مور عاطفه، مینه او سرښندنه باید په ځان کې احساس کړي او یا هم لیکواله پخپله مور وي.

**د ماشوم لپاره د کیسې لیکلو اساسي ټکي:**

- د کیسې عنوان/نوم باید د ماشوم لپاره جالب او جذاب وي، ګنې هغه یې د لوستلو لپاره لېوالتیا نه ښیي.
  د بېلګې په ډول: مسخره پیشو، اکو بکو، کیک ورک شو، للو للو، مهربانه چرګه او...
- د متن ژبه باید د ماشوم د درک او پوهې سره برابره په پام کې ونیول شي او په ټوله کې ساده او روانه وي.
- جملې یې لنډې وي؛ یعنې د هغه ماشوم لپاره چې تازه لوستل کوي، جمله باید له ۵ یا ٦ کلمو اوږده نه وي؛ خو هغوی چې مثلاً په دویم یا دریم ټولګي کې زدکړه کوي، د هغوی لپاره دې

جمله تر ۱۲ کلمو اوږده نشي، ګنې بیا هم لوستونکی یې له لوستلو پښېمانه کیږي.

- له لیکنښو باید ډېره وشي؛ خو د اړتیا پر مهال که یوازې (، ـ .) نښې وکارول شي، باک نلري. له دې هاخوا د نورو نښو په کارولو سره د متن په اړه د ماشوم پوښتنې زیاتیږي او کېدای شي د کتاب اصلي محتوا یې له پامه ولویږي.
- د امکان تر حده باید د لیکلو ژبه د ویلو ژبې ته ورنږدې شي، ځو ماشوم یې د پوهېدو لپاره زړه ښه کړي او الفاظ ورته اشنا ښکاره شي.
- له استعارو، مبهمو کلمو او جملو ځخه دې ډډه وشي او هغه کلمې یا جملې چې آهنګ او وزن لري (شعر)، کارول یې د توجه جلبولو لپاره ځانګړی ارزښت لري.
- د اړتیا پر مهال طنزي جملې د کیسې جذابیت پیاوړی کوي او کله کله ان ځینې احمقانه او د لیونتوب پېښې د ماشومانو پر خوله خندا راولي، چې دا کار هم پر خپل ځای مهم دی.
- په معاصره ژبه دې ولیکل شي. په دې معنا چې د پخوانیو، زړو او سوچه اصطلاحاتو کارول، د کیسې ژبه سختوي او ماشوم ته د کیسې په لړ کې سختې او بې مورده پوښتنې ور پیدا کوي چې باید ډډه ترې وشي.
- دغه راز پردي نااشنا/ نوي اصطلاحات او الفاظ هم باید ونه کارول شي.

- د کیسې د متن په لړ کې ځینې انځورونو ته ځای ورکول، د ماشوم توجه جلبوي او د متن لوستلو لپاره تلوسه ایجادوي.
- د لمنلیک موضوع هم اړینه ده چې باید یاده شي؛ لومړی خو باید الفاظ او نومونه د اړوندو ماشومانو له پوهې سره خورا برابر او اسانه وي؛ خو که چېرته اړتیا پیښه شوه، بیا هم لمنلیک پکار نه دی، بلکې د سختو کلمو یا نومونو معنا دې هملته په قوس کې جوخته ورسره ولیکل شي.
- تر وسې باید تراژیدیکو پېښو ته ځای ورنکړ شي، که چېرې لیکوال غواړي عادي پېښې پرې ښایسته او خوندورې کړي، نو د ډېرو ژورو هغو یادون یې اړین نه دی؛ بس محضې چې هم لیکوال خپله هنري پالیسې پلې کړي او هم د ماشوم روان ته زیان وانړوي.
- د کیسې کرکټر/کرکټران هر څوک یا هر څه ټاکل کیدای شي. لکه: حیوانات، نباتات او یا هم نور ژوندي یا غیر ژوندي موجودات. مهمه دا ده چې ماشوم ته په زړه پورې وي.
- ښه ده چې په هره پاڼه کې د کرښو شمېر له لسو لوړ نه شي، امکان لري د کرښو زیاتوالی د ماشوم لېوالتیا او حوصله کمه کړي. البته که تر دغه شمېر هم کمې وي لا ښه ده.
- په ټوله کې باید د کتاب حجم مناسب وي؛ ځکه چې ماشوم هومره صبر نه شي کولای، لکه یو لوی بنیادم یې چې د یو ناول لوستلو لپاره کوي.

- د کتاب پوښتۍ، انځورونه،کاغذ، په متن کې د تورو اندازه او ډول (فونټ)، ډیزاین او... مهم رول لري، چې باید د ماشوم د خوښې او لېوالتیا له مخې په پام کې ونیول شي.

**د ماشوم لپاره انځوریزه کیسه یا انځوریز کتاب**

د کیسې دا ډول د هر ماشوم لپاره خورا په زړه پورې او جالب وي؛ خو د هغه ماشوم لپاره چې تازه یې لوستل پیل کړي وي یا د الفبا زده کولو پړاو ته ننوتی وي، زیات ګټور دی؛ ځکه چې ماشوم له کتاب سره نوی اشنا کیږي او پکار ده چې د دغې اشنایي پیلامه له جذابیت څخه مالامال وي.

په ټوله کې انځوریز کتاب ماشوم ته خوند ورکوي؛ خو دا چې په کوم ډول کتاب کې څه ډول انځور راوړل شي، په لنډو یې لاندې روښانه کوو:

- په انځوریزه کیسه کې باید انځورونه ژوندي/روان وي؛ یعنې د کیسې په هر پړاو کې باید د انځور/انځورونو حالت د پېښې او موقعیت په اساس بدلون ومومي او ټول جریان په منطقي توګه تر پایه بدرګه کړي.
- د لوبو شیان انځورول او په مرسته یې بیا د یوې لوبې کیسه بیانول به، خورا په زړه پورې وي.
- د کارتونیکو انځورونو رول هم د ماشوم په لېوالتیا زیاتولو کې ډېر مهم دی.

**د انځوریزې کیسې ګټې:**

- ماشوم داسې احساسوي چې ګوندې کیسه په ژوندۍ بڼهویني.

- ماشوم په یو ډول د کیسې توکي د لمس وړ ګڼي او د همدغه احساس له مخې ځان د کیسې په محتوا کې دننه مومي.
- د ماشوم په خیال کې د انځور کاربرلو قوه پیاوړې کیږي.
- ماشوم پخپله پوښتنه رامنځته کوي او پخپله ځواب ورته پیدا کوي.

په دې معنا چې انځوریزه کیسه یا خو بیخي متن نلري او که یې لري هم، نو اصول یې له یوې جملې څخه زیات الفاظ نشي منلی. د همدې لپاره کېدای شي په اړوند انځور کې یوازې د مقصد یوه پېښه بیان شوې وي؛ خو لوستونکی یې په وار وار لوستلو سره، په هر انځور کې نورې پېښې هم پوښتلی او ترسیمولی شي.

- د نورو کیسو پرتله ماشوم له انځوریزې کیسې سره زیاته لېوالتیا ښیي.

## کتاب

**د کتاب تعریف**

د تألیف شویو، ژباړل شویو، تدوین یا راټولو شویو او چاپ شویو مطالبو، انځورونو او ارقامو ټولګې ته په هغه شرط کتاب ویل کیږي چې له ۴۸ مخونو څخه کم نه وي.

البته دا تعریف د یونسکو سازمان لخوا وړاندې شوی دی.

**د کتاب لیکلو لپاره لاندې ټکي په پام کې ونیسئ:**

۱- **مطالعه وکړئ:** د کتابونو او مختلفو لیکنو مطالعه، په لیکوالۍ کې زیات رول لري او د لیکوالۍ مهارتونه ورسره زیاتیږي.

۲- **څېړنه وکړئ:** د علمي، مسلکي او ادبي (ناول او لنډو کیسو) کتاب لیکلو لپاره څېړنه کول یو مهم اصل دی.

۳- **لیکل تمرین کړئ:** څومره چې یو کار ډېر ترسره کیږي، هومره پکې بلدتیا او وړتیا زیاتیږي، همدرانګه په هغه کار کې د نوښت او بشکلا رامنځته کولو لپاره فکري او خیالي پنځونې ته هم لاره هواریږي.

۴- **تداوم وپالئ:** کومې لیکنې مو چې کړې، لږ تر لږه یې یوه ورځ روسته باید وګورئ او ایډیټ یې کړئ. په دې معنا چې په دوامدار ډول ورسره په اړیکه کې اوسئ؛ ځکه که تاسو له خپلې لیکنې دوه یا درې ورځې لېرې پاتې شئ، نو له لیکوال څخه پر لوستونکي بدلیږئ.

۵- **له لیکلو خوند واخلئ:** طبیعي ده، کله چې تاسو یې له لیکلو خوند اخلئ، نو لوستونکي یې هم له لوستلو خوند اخلي. په دې معنا، کله

چې ليکل کوئ خپل احساس ته مو پام وي او همدغه مهال ستاسو احساسات په ليکنه کې ليږدول کيږي او د لوستونکو پام ور اوړي.

**٦- فرصت له لاسه مه ورکوئ:** کوم وخت چې ستاسو په واک کې دی، ترې ګټه واخلئ، ان که په ورځ کې نيم ساعت هم وي، ليکلو ته يې ځانګړی کړئ.

**٧- خپل ځان وپېژنئ:** هڅه وکړئ خپل ځان وپېژنئ او دا ځکه چې ځان پېژندنه مو د ليکلو سم لوري ته برابروي.

**٨- ټولنيز اوسئ:** ليکل بايد تاسو منزوي او ګوښی نکړي؛ ځکه چې د خلکو خبرو او کړو وړو د څرنګوالي په اړه پوهاوی د ليکوالۍ يوه برخه ده او ستاسو د معلوماتو او ليکنو پانګه زياتوي.

**٩- نظرونه راټول کړئ:** داچې ليکنه يا کتاب په ټولنه کې محبوبيت پيدا کړي، نو په دې اړه د مختلفو کسانو نظرونه واخلئ.

**١٠- همفکره ملګري ومومئ:** همفکره دوستان ستاسو د لا ښې او ګړندۍ ليکوالۍ په برخه کې مرستندوی ثابتېدلی شي.

**١١- د پام اړولو عوامل لېرې کړئ:** په داسې حال کې چې قلم او کاغذ درسره وي او ليکل کوئ؛ نو لکه ټيليفون، تلويزيون، راډيو او نور له ځانه لېرې کړئ.

**١٢- د شرايطو له مخې تمه ولرئ:** که چېرې دا ستاسو د ليکلو لومړی کتاب وي؛ نو دا تمه مه کوئ چې هغه دې په يوه/دوو يا څو مياشتو کې بشپړ شي؛ ځکه دا کار وخت غواړي او دا هم مه هيروئ چې تاسو په دې لاره کې نوی ګام ايښی.

**۱۳- بیړه مه کوئ:** د لیکنې یا کتاب د ژر بشپړېدا لپاره له بیړې کار مه اخلئ، ستاسو دا کار دوامدار او ان ورځنی دی، نو ښه ده چې د مهالویش له مخې په کراره پر مخ لاړ شئ.

**۱۴- په مناسبه اندازه خوراک وکړئ:** د دې لپاره چې باید د لیکلو پر مهال ځیرک، بیدار او عادي حالت کې واوسئ، نه کم او نه زیات خوراک وکړئ.

## د داستاني او غیر داستاني کتابونو ترمنځ لنډ توپیر

په ټوله کې د هر کتاب لیکلو لپاره تقریباً ورته اصول په پام کې نیول کیږي؛ خو چې کله د لیکلو چوکاټ او محتوا ته یې ورننوځو، دغلته بیا خامخا کړنلاره بدلیږي؛ یعنې د غیر داستاني کتابونو محتوا په مستقیم ډول د واقعیتونو له مخې بڼه مومي، خو د داستاني کتابونو هغه بیا، پر تخیلي او تصوري پیښو راڅرخي.

**د داستاني کتاب په اړه مو د پام وړ بحث کړی، اوس راځو غیر داستاني کتاب ته، چې د کومو اصولو له مخې څنګه لیکل کیږي؟**

## غیرداستاني کتاب

**د غیر داستاني کتاب په لیکلو کې څلور پړاوونه په پام کې نیول کیږي:**

۱- د موضوع ټاکل او په اړه یې مطالعه.

۲- د لیکلو لپاره چمتووالی او د لیکلو پیل.

۳- د متن سمښت (ایډیټ).

۴- د پوښتې او متن ښاوښت/ډیزاین.

**لومړی پړاو:** داسې موضوع وټاکئ چې په اړه یې معلومات ولرئ!

- کله چې غواړئ خپله ټاکلې موضوع وغځوئ او د کتاب په بڼه یې مجسمه کړئ، نو تر ټولو مهم ټکی دا دی چې تاسو باید د اړوندې موضوع په اړه کافي معلومات ولرئ او که یې نه لرئ، نو تحقیق او پلټنه وکړئ، څو په دې هکله ستاسو نیمګړي معلومات بشپړ شي؛ دا ځکه چې تاسو د واقعیتونو د عرضه کولو هوډ کړی، باید د دغه ماموریت یا مسوولیت په برخه کې رښتیني پاتې شئ او پخپله خپل باور ته صدمه ونه رسوئ.
- د اړوندې موضوع په اړه مهم کتابونه مطالعه کړئ! له دغې مطالعې سره مو نه یوازې معلومات زیاتیږي، بلکې د مختلفو لیکوالانو د لیکلو له طرز او سبک سره هم آشنا کیږئ چې د لیکلو په برخه کې ستاسو له ذوق سره خورا مرسته کوي.
- خپل نظریات او د مطالعې پایلې مو، ان د مطالعې او مشاهدې پر مهال یادښت کولای شئ، دا کار مو د کتاب لیکلو د پروژې په بشپړېدا کې درسره زیاته مرسته کولای شي.
- که چېرې څېړنیزه یا علمي موضوع مو ټاکلې وي او غواړئ څېړنیز یا علمي کتاب ولیکئ، ښه ده چې د اړوندو ټولو موضوعاتو او موادو عنوانونه په یو نوملړ کې ولیکئ او بیا یې د راټولولو لپاره لاس په کار شئ.

- خپل تحقیق او مطالعه پیل کړئ، معلومات مو زیات کړئ، که هغه د کتابونو له لارې وي، که له کارپوهانو او استادانو سره د مرکې له لارې او یا هم د انټرنټ او... له لارې.

**دویم پړاو:** د لیکلو لپاره باید پوره چمتووالی ولرئ!

- تاسو د یوې موضوع په اړه معلومات راټول کړي او غواړئ د کتاب بڼه ورکړئ. نو مخکې له دې چې قلم را واخلئ یا کمپیوټر ته کښېنئ او لیکل پیل کړئ، باید د لیکنې ژبه مو ساده او روانه وي، ګنې بیا د خپل کتاب/لیکنې د اغېزمنتیا او اهمیت په اړه چا ته قناعت نه شئ ورکولای.
- لومړی خو له کوم ځنډ پرته خپل لیکل پیل کړئ، بله دا چې د موضوع غځولو او لیکلو په لړ کې خپل نظر، خلاقیت او نوښت هم ونه سپموئ.
- سختې او لهجوي کلمې او جملې مه کاروئ، څومره چې کولای شئ په روانه او عامه ژبه لیکل وکړئ.
- له زیاتو او اضافه توضیحاتو ډډه وکړئ، که غواړئ چې کتاب مو لوستونکي ولري، نو د خپل مهارت له مخې وړو - وړو کیسو ته پکې ځای ورکړئ، جالبې او په زړه پورې پېښې او مثالونه پکې راوړئ؛ په دې سره د کتاب محتوا د لوستونکو لپوالتیا خپلوي او کتاب مو نامتو کیږي.

**دریم پړاو:** د کتاب د متن سمښت/ایډیټ

- مخکې له دې چې د متن پر سمبښت پیل وکړئ، د دویم شخص په توګه اړوند متن په لوړ غږ ولولئ، په دغه کار سره کولای شئ، د یو لوستونکي په توګه سم او بې پرې قضاوت وکړئ او له مخې یې په متن کې په سم او وړ ډول سمبښت رامنځته کړئ.
- د متن سمبښت د لیکوالۍ مهمه برخه ده چې که صداقت او دقت پکې وشي، نو ستاسو د زحمت ګوهر به را برسېره کړي. لیکلی کتاب مو د ایډیټ لپاره یو بل متخصص شخص ته هم سپارلی شئ، کېدای شي د هغه له خوا د متن په سمبښت کې هغه زړه خوږی ونشي، لکه ستاسو لخوا یې چې د امکان اټکل کېږي.

**ځلورم پړاو:** د کتاب د پوښتۍ او متن بڼاوښت/ډیزاین

- د کتاب د بڼاوښت پړاو هم خورا مهم دی، هر څومره چې د یو کتاب ښکاره بڼه ښکلې او د پام وړ وي، همغومره زیاته توجه هم ور اوړي. کله چې یو لوستونکی کتابپلورنځي ته د کتاب پیرلو لپاره ورځي، په سر کې یې د کتاب پر پوښتۍ سترګې لګېږي او ورته ځیر کېږي، روسته یې دوه درې ځله په چټکۍ پاڼې اړوي او بیاد کتاب پېژندنې په مخ کې تم کېږي؛ نو که چېرې د اړوند کتاب پوښتۍ سمه بڼاو شوې وي، راکښون پکې پروت وي، د کتاب دننه متن په جذاب او روښانه ډول ترتیب شوی وي او د هرې موضوع عنوان په هنري جامه سمبال شوی وي، بیا نو که لوستونکی په جیب کې پیسې ولري، د بل کتاب پیرلو ته زړه نه ښه کوي.

## درسي کتاب

د يوې موضوع يا مضمون په اړه د هغو بحثونو ټولګه ده چې په ښوونيز نصاب کې د اړوند مضمون د درسي مفرداتو مطابق او د منل شويو درسي ساعتونو سره برابر چمتو کيږي.

درسي کتاب معمولاً د مختلفو څېړکو په چوکاټ کې تدوينيږي او د ښه پوهاوي لپاره پکې ګرافونه، جدولونه، انځورونه، کارټوني تصويرونه او معياري شکلونه راوړل کيږي.

درسي کتاب د رسمي او ټاکليو اصولو له مخې ليکل کيږي چې دلته نه يوازې د ځينو الفاظو او جملو د تکرار مخنيوی جدي نه ګڼل کيږي، بلکې ارزښت هم ورکول کيږي؛ ځکه چې په درسي کتاب کې يوازې د زدکوونکو پوهېدل مهم دي او د ښوونيز نصاب چمتوکوونکي استادان او ماموران د خپلو تجربو او لايحو له مخې اړوند درسي مواد داسې ترتيبوي چې هم د زدکوونکو په سويه برابر وي او هم يې د زده کولو لپاره د پام وړ ګرځېدلي وي.

مخکې د زدکوونکو د سويې خبره وشوه، خو د تفکيک په اړه يې لا څه نه دي ويل شوي، هغه په دې معنا چې د زدکړې بهير د اندازه کېدو وړ نه دی او د عمر تر پايه هم زدکړه کېدلای شي؛ خو که دلته يوازې د ښوونځي، انستيټوټ يا پوهنتون دورې د يو مثال له مخې په کلونو محاسبه کړو، نو دا لړۍ تر شپاړسو کالو رسيږي او په دغه شپاړس کلن بهير کې د عمر رديفونه/کټګورۍ خامخا سره تفاوت لري چې له مخې يې د عمر او پوهې په اساس د زدکوونکو سويه تشخيص کيږي. د بېلګې په ډول: ماشوم

معمولاً په اووه کلنۍ کې ښوونځي کې شاملیږي او په دغه پیل کې ایله کولای شي چې د حروفو او اعدادو زده کولو ته خوله جوړه کړي، جملې خو پرېږده، حتا د کلمو زده کول به هم ورته ستونزمن کار وي، البته که ځینې کلمې د یو شمېر ماشومانو په ذهن کې ځای نیسي، نو هرومرو به یې د هغو شکلونه په نښه کړي وي، ګنې د تورو له مخې یې ترکیب یا پېژندل ځکه ورته ستونزمن دي، چې هغوی لا په بشپړ ډول الفبا توري نه دي پېژندلي، د غږونو او یوځای کولو موضوع خو یې بیخي لېرې ده.

له همدغه امله باید دا اړین ټکی په پام کې ونیول شي، چې د درسي کتابونو د لیکلو لپاره سني ردیف او ټولګی په پام کې نیول له اساسي شرطونو څخه شمېرل کیږي. مثلاً: د ابتدایي دورې کتابونه باید تر شپږم ټولګي پورې په شپږو ردیفونو کې ولیکل شي؛ یعنې د دویم ټولګي زدکوونکی د لومړي ټولګي زدکوونکي پرتله یوڅه زیاته زدکړه او پوهه لري، همدارنګه د دریم ټولګي زدکوونکی بیا د دویم ټولګي له زدکوونکي څخه د درک او پوهې له مخې لوړ دی او په ترتیب سره تر شپږم ټولګي پورې. نو دلته شرط همدا دی چې باید د هر کال/ټولګي په سویه برابر کتاب ولیکل شي، څو اړوندو زدکوونکو ته دا فکر ور پیدا نشي چې ګواکې د ټاکلي کتاب محتوا پېچلې، بې مفهومه او یا د دوی له سویې لوړه یا ټیټه ده او په یو ډول ورته اړ وېستل کیږي چې د زده کولو تمثیل یې وکړي.

البته یو بل مهم ټکی د یادولو دی چې درسي کتاب له نورو کتابونو سره د ځینو محدودیتونو او قوانینو له مخې په توپیر چمتو کیږي. لکه: د ټاکلو درسي ساعتونو او وخت له مخې د پاڼو او مخونو شمېر، د زده کولو

ظرفیتونه، فردي تفاوتونه، د سمښت لپاره نرمښت او شرایطو سره توافق، د زدکړې چاپېریالیز توپیرونه او نور په پام کې نیول. همدارنګه هغه عناصر چې د دغه کتاب په جوړښت کې اړین او مهم دي، یوازې نومونه یې اخلو: نوم/عنوان، لیکلړ، سریزه، ټولیزه موخه، ښوونیزې موخې، فصل بندي، انځورونه، جدولونه، ګرافونه، متن او د اړتیا پر وخت مناسبه ډلبندي او لنډیزونه.

## ښه درسي کتاب

په ټوله کې ښه درسي کتاب نه یوازې د زدکوونکو خوښېږي، بلکې د تدریس په برخه کې د ښوونکو د لېوالتیا لامل هم ګرځي او بالاخره د ښوونکي او زدکوونکي ترمنځ د یوې ښې او اغېزمنې اړیکې حیثیت خپلوي.

**د اوسنیو درسي کتابونو محتوا د لاندې عنوانونو له مخې ترتیبېږي:**

ټولیزه موخه، ښوونیزې موخې، مثالونه، تمرینونه، فعالیتونه، کورنۍ دندې، پوښتنې او ورسره اړوند نور فعالیتونه او عملي کارونه.

دا چې تر کومه حده دغه چوکاټ ښه اغېز لرلی دی، کاش د یوې رسمي سروې له لارې یې پایله څرګنده شوې وای؛ خو په هر حال، په ټوله کې ویلی شو چې د زدکوونکو ښه پوهاوي لپاره باید درسي کتابونه په داسې مهارت ولیکل شي چې نه یوازې ژبه یې ساده او محتوا یې نوې وي، بلکې دومره جذابیت پکې نغښتی وي چې ښوونکی د ښوونې پر مهال او زدکوونکي د زده کولو پر مهال له ځان سره وساتي.

## د درسي کتاب لیکلو مهمې لارښوونې:

- د کتاب ټولیزه موخه باید د دغه کتاب د محتوا له مخې ترتیب شي او یا محتوا باید له ټولیزې موخې سره په ټکر کې نه وي.
- د درسي موادو ترتیب باید په داسې مهارت ترسره شي چې زدکوونکي یې د لوستلو او زده کولو پر وخت ترې مخ وانړوي.
- محتوا یې باید جذابه او د بیان ژبه یې ساده او روانه وي. دغه راز د معیاري سبک کارولو ترڅنګ، انشایي او املایي تیروتنې هم ونلري.
- په زړه پورې او هڅوونکو مثالونو، انځورونو او تجربو ته پکې ځای ورکړ شي.
- د هغو کلمو، جملو او پیغامونو له کارولو باید ډډه وشي چې پاروونکې وي یا هم د قانون او ارزښتونو پر وړاندې منفي مفکوره خپروي.
- د زدکوونکو د ابتکار او خلاقیت لپاره باید د اړوند کتاب د جز په توګه، ځانګړي مناسب درسي مواد او پوښتنې ترتیب شي.
- د هر څپرکي د اړوندو موادو لنډیز حتمي دی او دا لنډیز باید د څپرکي له تشریح نه وړاندې داسې ځای پرځای شي چې زدکوونکی د مفهوم اخیستو لپاره ترې ګټنه وکړای شي.
- تر ډېره باید په تمرینونو، پوښتنو او کورنۍ دندو یا ژوندي فعالیتونو باندې تمرکز ولري.

- مطالب باید نه دومره اوږده وي چې له زدکوونکو اصلي درس ورک کړي او نه دومره لنډ وي چې اړوند درس پکې ګونګ یا نیمګړی پاتې شي.
- فارمولونه او معادلې باید په Equation اپشن کې وکارول شي، له دې پرته ګډوډیږي.
- اړوند مطالب باید د یو منطقي او اصولي ترتیب له مخې ځای پر ځای شي.
- د زدکوونکو عمر او ټولګي ته په پام، باید د کتاب محتوا برابره شي.
- هر مطلب باید داسې چمتو شي چې پکې د زدکوونکو عملي کار د اړوند مطلب یوه برخه وي.
- یوازې دا نه چې پاراګرافونه باید لنډ وي، بلکې د پاراګراف په ترکیب کې د جملو لنډوالی او ساده والی هم خورا ارزښت لري.

## د کتاب ترتیبولو ټولیزې ځانګړنې

دا خو ښکاره ده چې یو کتاب له کاغذ او لیک (متن) څخه بڼه مومي؛ خو دا چې په روان بحث کې د لیک (د کتاب دننه محتوا) موضوع مطرح ده او دغه برخه یوازې په لیکوال پورې اړه لري، نو ښه ده چې د همدې موضوع پر اجزاوو او موادو رڼا واچو.

**د کتاب لیکلو او ترتیبولو ځانګړنې:**

- **د پوښتۍ ډیزاین او نوم:** په محتوا پورې اړوند په مناسب ډبل لیک سره د کتاب نوم کارول او د پوښتۍ بڼاوښت/ډیزاین.
  - په معمول ډول د پوښتۍ په ټیټه برخه کې په (۱۴ فونټ کې) د لیکوال/ژباړن نوم، (البته د نوم لیکلو لپاره د موقعیت ټاکل په ذوق او خوښې پورې هم اړه لري).
  - په ادبي کتاب کې د ژانر معلومول (ناول، شعري ټولګه، طنز، خاطرات او...).
  - د ذوق له مخې د کتاب نوم اړوند یوه لنډه توضیح (البته شرط نه ده). خو دا یادون باید وشي چې د پوښتۍ پرمخ تر دغو مشخصاتو زیات څه لیکل نه دي پکار؛ ځکه چې هم له لوستونکي د موضوع اصلي عنوان ورکیږي او هم د کتاب پوښتۍ باندې ګڼه ګوڼه ښه نه بریښي.
- **د کتاب نوم:** د کتاب دننه د لومړۍ پاڼې پر لومړي مخ هم د پاسنیو جزیاتو کتمټ کارول.

- **کتاب پیژندنه:** په دویم مخ کې د اړوند کتاب ځانګړنې او نېټه کاږل دي او په پای کې یې د خپرندوی پیژندګلو او حقوقي یادښت ته هم ځای ورکول کیږي.
- **بسم الله:** د دویمې پاڼې په لومړي مخ کې د بسم الله لیکل.
- **ډالۍ/پیغام:** په بل مخ کې یې د ډالۍ پیغام ته ځای ورکول؛ (خو دا کار هم په ذوق پورې اړه لري، شرط نه دی).
- **لیکلړ:** د دریمې پاڼې په لومړي مخ کې لیکلړ ته ځای ورکول.
- **تقریظ/ستاینه:** د شتون پر مهال له لیکلړ روسته تقریظ ځای پرځای کول؛ خو که نه وي، اندېښنه یې مهمه نه ده.
- **پیلیزه او سریزه:** ورپسې بیا پیلیزه او بیا هم سریزه.

**یادښت:** شاید ځینو ته دا پوښتنه پیدا شي چې د پیلیزې او سریزې ترمنځ توپیر څه دی؟ اسانه یې درته وایم، پلیزه تر سریزې مخکې راځي او په دې کې لیکوال په مستقیمه توګه له لوستونکي سره د اړوند کتاب د لیکلو او په ټوله کې د چمتو کولو په اړه یې خبرې کوي؛ یعنې ولې یې دغې موضوع ته پام شو او په څومره وخت کې یې څنګه اړوند مواد ترتیب او یو کتاب کې راټول کړل؟ دغه راز هغه کیسې هم کولای شي چې د یاد کتاب په چمتووالي کې له ستونزو، تجربو، مشاهدو او... سره مخ شوی دی.

خو سریزه بیا یوازې د کتاب په محتوا پورې اړه لري او په لنډه توګه د ټولو مطالبو تعریف پکې بیانیږي؛ البته یو ټکی چې باید

هېر نشي، دا دی چې پیلیزه یوازې لیکوال لیکلی شي؛ خو سریزه هم پخپله لیکوال لیکلای شي او هم یې بل څوک.

- **متن:** بیا ستاسو د ټاکل شوي ترتیب له مخې د کتاب متن کارېږي.
- **لمنلیک/تللیک (Footnote):** کله کله په متن کې ځینې اصطلاحات او کلمات راځي چې توضیح او ژباړې ته اړتیا لري یا دا چې د ځینو نقل قولونو د سرچینو یادون ته اړتیا پېښېږي، په دغسې مواردو کې له لمنلیک نه ګټه اخلو.

  البته لمنلیک په هغه مخ کې راځي، په کوم کې چې ګونګ او د توضیح وړ الفاظ/کلمات وي؛ معمولاً لمنلیک د پاڼې په ټیټه برخه کې راوړل کېږي.
- **سرچینې/منابع:** د کتاب پای کې د هغو سرچینو یادول مهم دي چې د معلوماتو ترلاسي لپاره ترې ګټه اخستل شوې وي.
- **ویپانګه:** د ذوق یا اړتیا له مخې د اړوند متن د سختو یا نااشنا کلماتو ویپانګه/د لغاتو ذخیره.

# ليکنښې

**ليکنښې:** هغه بې غږه منل شوي سمبولونه دي چې د ليک اسانه لوستلو او په متن کې د غږونو د حالت ښولو لپاره کارول کيږي.

منل شوي په دې معنا چې په هره ژبه کې کارول کيږي او په هره ژبه کې ورته ځانګړی نوم لري. لکه په انګريزي کې Punctuation، په روسي کې (زنکي پروه پيسانيا)، په پارسي کې علامات يا علامت ګذاری او په پښتو کې ورته ليکنښې وايي.

**د ليکنښو ارزښت:** کله چې په متن کې ليکنښې پر خپلو ځايونو وکارول شي، نو نه يوازې متن په اسانه لوستل کيږي، بلکې د غږ او ټون په بدلولو، د مفهوم له مخې د متن روښانه کولو، هنري کولو او جذابيت کې هم مهم رول لري.

**دلته اړوندې مهمې او عامې نښې له بېلګو سره روښانه کيږي:**

- **کامه(،):** کامه په ځينو نورو ژبو کې د واو ښه لري؛ خو په پښتو کې د چپه پېښ يا چپه واو په شان ده چې خورا مهم رول يې خپل کړی دی.

کامه تل د کلمو او نومونو بېلولو رول لري، همدارنګه د لنډې دمې او د (او) له تکرار څخه د مخنيوي لپاره کارول کيږي.

**لکه:** زرګی، اسلم، عبدالله، مينه. که چيرې همدا نومونه داسې وليکو: زرګي او اسلم او عبدالله او مينه او...

چې د (او) د تکرار له امله د ټول متن خوند له منځه ځي او لوستونکی يې له لوستلو ډډه کوي.

**يا په کيسه کې:** حسيب ښوونځي ته لاړ، هغه له واجد سره يو ځای ټولګي ته ننوت، بکسې يې له اوږو وښوېلې او...

- **کامه ټکی(؛):** دا نښه په پښتو کې څنډښه هم ګڼل کيږي چې د کامې(،) پرتله د لږ څه زياتې دمې لپاره کارول کيږي. همدارنګه د هغو اوږدو جملو د جلا کولو لپاره راځي چې په ښکاره خپلواکې وي؛ خو په معنا کې يو تربله سره تړوا ولري. همدارنګه په هغو جملو کې چې (خو، اما، ځکه چې، يعنې) کلمې راځي، له هغو څخه مخکې کارول کيږي.

  **لکه:** افغانان د سولې تږي دي؛ خو شرايط يې په ارامه نه پرېږدي.

  **يا:** زه لوړې زدکړې نشم کولای؛ ځکه چې معاش مې کم دی. او...

- **ټکی(.):** د بشپړې دربدا په هدف کارول کيږي. معنا دا چې کله جمله يا پارګراف ختميږي، په پای کې يې بايد ټکی کېښودل شي. دغه راز په لنډيزونو کې هم ترې ګټه پورته کيږي.

  **لکه:** پاسنی پارګراف يې ښه بېلګه ده.

  **يا:** ا.ا.ج يا م.م او نور.

- **شارحه(:):** د يوې موضوع د روښانه کولو، تحليلولو او ويشلو په مفهوم راوړل کيږي.

  **لکه** په لاندې ډولونو:

- د انسان د بدن غړي:
- د کابل ځلورو خواو ته لاندې ولايتونه پراته دي:
- يو کال په ځلورو فصلونو ويشل کيږي:
- نوموړي وويل:

❖ **سواليه(؟):** د هغې جملې يا وينا په پای کې کارول کيږي چې پوښتنه پکې مطرح وي.

**لکه:** ستا نوم څه دی؟ افغانستان د اسيا په کوم لوري کې موقعيت لري؟ او ...

❖ **ندايه(!):** مخاطب ته په غږ کولو، د امر په کولو او يا له چا نه د يو څه غوښتلو پر مهال کارول کيږي.

**لکه:** برياليه! يو ځل دلته راشه! دا کتاب خو ما ته راکړه!

❖ **کش(ـ):** دا نښه د نوم او ضمير تکرارېدو د مخنيوي لپاره د جملې په سر کې کارول کيږي؛ يعنې معمولاً په کيسه کې د کرکټر د وينا لپاره ترې ګټه اخيستل کيږي.

**لکه:**

هغه وويل:

- ولې مکتب ته نه وې راغلی؟

ځواب مې ورکړ:

- ناروغ وم.
- ډاکټر ته لاړې.
- هو، بلها درمل يې راکړل.

❖ **لينديۍ يا قوسونه( ):** په لينديو کې د مبهمو کلمو يا نومونو، اصطلاحاتو او مخففاتو په اړه وضاحت ورکول کيږي.

**لکه:** ا.ا.ج (د افغانستان اسلامي جمهوريت)،

هوسۍ (زموږ ښوونکې) مې بازار کې وليده.

او ستراتيژي (تګلاره)

يا هم داسې: چې هير دې نشي، دا ځل د (فېسبوک) ناول راته راواستوې.

❖ **غبرګې لينديۍ/قوسونه«»:** کله چې په متن کې د بل چا نقل قول يا نظر را اخيستو ته اړتيا پيښيږي، نو بايد په دغو دوو لينديو کې راوړل شي.

**لکه:** د ولسمشر دغې خبرې چې «افغانستان بايد د نړۍ په اقتصادي او ترانزيتي څلورلارې بدل شي» خوند راکړ.

**يا:** استاد وويل: «ژبه د يوې ټولنې د هويت مهمه برخه ده».

❖ **درې ټکي(...):** د يو نوم او کلمې نه ښودلو يا د دوام او يا په ښکاره د يو نوم/برخې نه څرګندولو او يا هم د (داسې نور) په موخه کارول کيږي.

**لکه:** زياتره دولتي زمکې د ... مشرانو لخوا غصب شوي دي.

**يا:** اوس په اقتصادي، فرهنګي، سياسي او... برخو کې زيات پرمختګ شوی دی.

**يا:** وچه ميوه لکه: مميز، بادام، پسته، نخود، غوزان او...

- **درې ستوري(***):** دا د څپرکو د بدلولو يا د برخو بېلولو په موخه کارول کيږي چې تر ډېره په ډرامه، ناول يا کيسه کې ترې ګټنه کيږي.
- **مايل خط(/):** دا نښه چې په همدغه کتاب کې هم کارول شوې، د (يا، يعنې) په معنا ترې استفاده کيږي.

  **لکه:** مقاله/ليکنه، سوژه/موضوع، پايله/نتيجه او...
- **تلکرښه/انډر لاين(U):** هغه عنوان، کلمه يا جمله چې ليکوال يې مهمه بولي او غواړي د لوستونکي پام ورته جلب کړي، نو له تلکرښې استفاده کوي.

  **لکه:** مطالعه د ليکوالۍ يو اصل دی.

**د لیکنښو کارولو او د متن ترتیبولو په اړه ځینې مهمې لارښوونې**

❖ **په متن کې د کلمو ترمنځ واټن په پام کې نیول:** په معیاري ډول د دوو کلمو ترمنځ باید د سپېس «واټن» تشې یو ځل کېکاږل شي.

❖ **د لیکنښو په کارولو کې معیاري واټن رعایتول:** ګنې کېدای شي د لوستلو پر مهال لوستونکی له ستونزې سره مخ شي.

دا موضوع په دغو څو مثالونو کې روښانوو:

➢ د جملې په پای کې چې کله ټکی، کامه، شارحه، ندایه او یا کومه بله نښه ږدئ، نو د جملې د پای کلمې پورې یې ونښلوئ. **مثلاً:** د روستۍ کلمې او نښې ترمنځ سپېس یا واټن مه کاروئ. له دې پرته د ځینو بدلونونو له کبله کېدای شي د هغې نښې ټاکلی ځای هم بدل شي؛ یعنې د کرښې بشپړېدو یا انټر کولو سره هغه لاندې کرښې ته راشي او...

➢ د نومونو یا کلمو په بېلولو کې هم چې کله کامه کاروو، نو کامه باید د لومړۍ کلمې سره نښتې او ورپسې بلې کلمې سره یو واټن ولري. **لکه:** مېز، څوکۍ، ټولګی او...

➢ که چېرته کامه یا نورې نښې په داسې توګه وکارول شي چې هم د لومړنۍ او هم د ورپسې کلمې ترمنځ یو- یو واټن ولري، نو بیا به په متن کې د ځینو بدلونونو یا انټر

کولو له امله اړوند نښه بې مفهومه او ځانته پاتې وي.

**لکه:** کتاب ، قلم ، کتابچه ، مېز ، څوکۍ ، تباشیر او ...

- د لیندیو یا قوسونو له کارولو سره باید د لیندۍ دننه په دواړو خواوو کې د متن او لیندیو ترمنځ واټن په پام کې ونه نیول شي؛ ځکه چې کېدای شي د کمپیوټري بدلون یا د کرښې بشپړېدا پر مهال یوه لیندۍ پاس کرښه کې پاتې شي او بله د اړوند متن سره لاندې کرښې ته ولېږدیږي او یا هم بالعکس.
- په ټوله کې ویلای شو چې نښې خپلواکې نه دي او معمولاً د لومړۍ کلمې یا جملې اړوند ګرځي؛ خو دا چې دلته د لیندیو موضوع هم مطرح ده، نو دواړه لیندۍ یوازې په هغه متن پورې اړوندیږي چې په منځ کې یې شتون لري او باید نښتې بڼه ورسره ولري.
- د مایل (/) خط په اړه هم یادون مهم دی او هغه دا چې د دغه خط دواړو خواوو ته باید کلمې نښتې بڼه ولري او هېڅ ډول واټن ته پکې اړتیا نشته؛ ځکه چې له مایل خط روسته کلمه د لومړۍ هغې اړوند او همفهومه ده او مایل خط د دواړو کلمو د بېلوالي په هدف نه، بلکې د تړاو په موخه کارول کیږي، چې له دې پرته کېدای شي د کمپیوټري بدلون له امله د دواړو کلمو ترمنځ تړاو او

مفهوم تر پوښتنې لاندې راولي. **لکه:** لیک/خط، ډیل/معامله، پوستکالی/سافټویر او...

- ❖ **د کرښو ترمنځ واټن** (Single Line Spacing)**:** د کرښو ترمنځ واټن باید د یوې مناسبې کرښې په اندازه وي.
- ❖ **لیکبڼه** (font)**:** د هرې برخې او سویې لپاره باید مناسبه لیکبڼه غوره شي؛ خو د کتاب دننه متن لپاره واضحه او ساده لیکبڼه خورا مهمه ده.
- ❖ **لیک کچ** (font size)**:** معمولاً د لیک کچ (سایز) باید ۱۲/۱۳ وي.
- ❖ **شمېرې کارول:** په متن کې د عنوانونو او اجزاوو لپاره د شمېرو او الفبا له زیاتو کارولو باید ډډه وشي، ګنې د لوستلو پر مهال له لوستونکي لوری ورکیږي.
- ❖ **د متن برید:** د کرښو د پای سرونه باید سره برابر وي؛ یعنې متن باید (Justify) شوی وي.
- ❖ **شمېرې/ارقام او عدودونه:** ښه ده چې په متن کې له پښتو عددونو کار واخلئ؛ خو که څوک لاتینې اعداد کاروي، باک نه لري. البته د پام وړ خبره دا ده چې د کتاب له پیله تر پایه باید شمېر په یوه ژبه وي، که هغه لاتیني یا پښتو وي، توپیر نه کوي، مهمه دا ده چې په مسلسل ډول د یوې ژبې شمېر وکارول شي.

- ❖ **ځانګړي معلومات:** که په متن کې جدول یا انځورونه کارېدل، نو د انځور اړوند لنډ معلومات/عنوان باید د انځور لاندې او د جدول هغه د جدول پر سر ولیکل شي.
- ❖ **ټب/Tab:** د هر پارګراف د سر کرښه په یو ځل ټب Tab کېکاږلو سره دننه بوځئ. البته دا ځانګړنه یو ډول سلیقوي او ذوقي وبولئ؛ ځکه په ځینو کتابونو کې ورته توجه نه کیږي؛ خو په هر حال، تاسو هم د خپل ذوق له مخې مخکې لاړ شئ، لکه زه.
- ❖ **د مخونو شمېرې:** د مخونو شمېرې د کتاب د اصلي موضوع د پیل له مخ څخه پیلیږي؛ یعنې که له څپرکو نه استفاده شوې وي، له لومړي څپرکي شمېره پیلیږي. البته له دې مخکې مخونه (د بسم الله تر مخ پورې) د الفبا یا رومي شمېرو په مرسته په نښه کیږي او له هغو مخکې نور مخونه نه شمېرې لري او نه الفبا توري؛ هغه یوازې د عنوان/نوم او ډالۍ مخونه دي.
- ❖ **سرچینې/منابع:** سرچینې د کتاب د پای برخه کې په څو ډولونو کارول کیږي؛ خو زه یې یوازې درې ډوله درته راخلم:

**لکه:** د لیکوال تخلص، د لیکوال اصلي نوم، (د خپرېدا کال)، د کتاب یا مقالې یا رسالې نوم، خپرندوی، ښار/ځای.

**بېلګه:** کمال، کمال الدین، (۱۳۸٦ل)، مدیریتي مهارتونه، بیهقي خپرندوی، کابل.

**یا:** لیکوال، کتاب/مقاله، ژباړن، خپروندوی، ځای، چاپ کال.

**بېلګه:** حمیدی، نسرین، شنه کوتره، ژباړنه، هوسۍ الفت، افغان خپرنځی، کابل، ۱۳۹۷ل.

**یا:** لیکوال، کتاب/مقاله، کال

**بېلګه:** حبیبي، عبدالحی، پټه خزانه، ۱۳۲۲ل

## د ځینو نومونو، اصطلاحاتو او فعلونو تفکیک او کره کول

**دا بیخي ناسمه ادعا ده چې وایي:**

**(پښتو چې څنګه ویل کیږي، همغسې لیکل کیږي).**

البته په سر کې یو بل مهم یادون کوم او هغه دا چې په مرکب نوم یا کلمه کې د واټن (سپېس) او (ه) توري لپاره په هممهالي ډول هېڅ ځای نشته او دا په پښتو ادبیاتو کې له پخوا منل شوی اصل دی؛ دا چې دغه اصل د کمپیوټر په دوره کې په بشپړ ډول نه دی رعایت شوی، لاملونه یې په ټوله کې له واحد او ټاکلي معیار پرته د لیکوالانو او ادیبانو لهجوي او ځان ځانته فعالیت دی او ترڅنګ یې په هېواد کې له کلونو راهیسې د سیاسي بحران، فرهنګي یرغل او ټولنیزې ګډوډۍ د دوام منفي اغېز هم له پامه نه شو غورځولی.

دا چې دا اصل په تدریجي ډول منل کیږي، دلیل یې دا دی چې کله په فردي توګه یې معیاري او منطقي بڼه ښودل شوې یا ښودل کیږي، نو طبعاً د دا ډول بدلون لړۍ به ورو او له سلیقوسره جوخته روانه وي؛ ځکه چې منل یې په ټولنه کې ستونزمن او له عادت لیرې بریښي؛ خو دا باید هېر نشي چې انسان د خپل خاصیت له مخې له هر نوي څیز سره عادت کیدلای شي؛ اما د دغه عادت موده له مخکې نه شي ټاکل کیدای، نو اړینه دا ده چې دغسې قاعدې باید د یو رسمي ارګان یا ټولنې لخوا د یو معیار په بڼه د منلو لپاره وړاندې شي.

د یاد واټن د نشتوالي ثابتېدا په اړه خورا زیات مثالونه شته چې اوسمهال په بشپړ ډول منل شوي هم دي؛ خو مهمه موضوع دا ده چې نور باید د سلیقو

او خپلچارۍ له تنګ ماحوله راووځو او هر ګام د يو ټاکلي معيار له مخې پورته کړو.

**د بېلګې په توګه:** ډه ډه/ډډه، زه ړه/زړه، له پاره/لپاره، برخه من/برخمن، برخه ليک/برخليک، هيله من/هيلمن، شته من/شتمن، پانګه وال/پانګوال، وسله وال/وسلوال ورپه سې/ورپسې، هغه سې/هغسې، کومه سې/ کومسې، دغه سې/دغسې يا بيړه نۍ/بيړنۍ، ننه وتل/ننوتل او...

که په دې اړه زه پوښتنه وکړم چې ولې د ځينو کلمو لپاره ياد اصل منل شوی او د ځينو لپاره نه؟ شايد ځينې فکرونه ځواب او دليل ورته ولري؛ خو ګمان نه کوم چې د ځواب يا دليل منطق يې هومره پياوړی وي چې د نوي فکر ترځنګ د ټکنالوجۍ سراسري پراختيا هم په اسانه قانع کړي.

دغه راز په ځينو نورو مواردو کې هم د (ه) توري د کارولو پر سر اختلاف شته، چې ځينې يې ګرامري او مفهومي توپير ته پام نه کوي او لکه څنګه چې ويل کېږي، د هر حالت لپاره يې همغسې يو شان ليکي؛ خو ځينو بيا دا توپير منلی او له قاعدې سره سم روان دي.

**لکه:** په خپله/پخپله، زده کړه/زدکړه، زده کوونکی/زدکوونکی، په کار/پکاراو...

د يادولو ده چې پاسنيو بېلګو کې زدکوونکی يوازې د اسم يا کلمې په توګه ځکه مستثنا دی چې په ملي ترمنالوجۍ کې يې پېژند/تعريف ځانګړی شوی او له نوم پرته بله بڼه نلري؛ خو البته د يادې قاعدې له جوړښته يې نشو وېستلی؛ نورې بېلګې د کلمې په چوکاټ کې جلا او د جملې په چوکاټ کې جلا مفهوم وړاندې کوي، چې لاندې پرې لنډه رڼا اچوو:

- **پخپله/په خپله:** دا دواړه بېل بېل مفاهيم دي؛ پخپله هغه مهال ګډ ليکل کيږي چې(په) مستقله بڼه ونلري، بله دا چې پخپله د هر حالت لپاره همدغسې په ښځينه بڼه ليکل کيږي؛ يعنې پخپل ليکل يې ځکه سم نه دي چې هم د نارينه او هم د ښځينه منسوب لپاره پخپله يو اصل دی. **لکه:** «زه خپلې جامې پخپله اغوندم» يا «سليم غټ شوی او ښوونځي ته پخپله ځي».

خو په خپله ځکه جلا ليکل کيږي چې دغلته (په) خپلواکه/مستقله بڼه لري؛ البته دا خپلواکي د جملې له حالت څخه څرګندېدلای شي.

**لکه:** «زه په خپله کوټه کې يم» يا «هغه په خپل موټر کې ځي راځي». دلته په ځانته او خپله/خپل ځانته معناوې خپلوي؛ چې «زه پخپله کوټه کې يم» او «هغه پخپل موټر کې ځي راځي» بڼې يې ناسمې دي.

- **زده کړه/زدکړه:** لومړۍ هغه يې چې د زده کړه په بڼه ليکل کيږي، د امريه جملې حيثيت لري؛ يعنې زده جلا او کړه جلا معناوې خپلوي او د مخاطب پر وړاندې د امر په توګه کارول کيږي. لکه: «بريالیه خپل درس دې زده کړه»، «هله نو دا درس خو زده کړه» يا غوټۍ انګريزي زده کړې ده.

دويمه هغه يې چې بايد د تعليم، درس يا Education مترادفه وي، پکار ده چې همغسې د کلمې/نوم په بڼه وليکل شي. لکه: «د تخنيکي او مسلکي زدکړو اداره»، «د لوړو زدکړو وزارت»، «د

یونسېف اداره د بېلابېلو زدکړو لپاره فرصتونه برابروي» یا «غواړم لوړې زدکړې وکړم».

- **پرله پسې/پرلپسې:** لومړی هغه یې بیخي د لهجې (وینا) له مخې لیکل کیږي چې نه یوازې د کلمې اطلاق نشي ورته کېدای، بلکې د واحد مفهوم وړاندې کولو په توګه روښانه تعریف هم نشي خپلولی.

لکه: پر جلا، له جلا او پسې جلا؛ چې یو تر بله متضادې معناوې لري او په همدغسې حالت کې یې یو ځای کول (د کمپیوټري نیمه واټن/سپېس سره سره) بیا هم لوستونکی (په تېره د بلې ژبې ویونکی) نه یوازې قانع کولای نشي، بلکې نورې پوښتنې ورته پیدا کوي. نو د دې لپاره چې هم مو معیار منلي وي او هم مو له ناموردو پوښتنو خپل ادبیات ژغورلي وي، د (واټن «سپېس» او «ه» توري) د حذف کولو قاعده پلې کوو او لیکو: پرلپسې

په دې اړه باید هغه اصطلاحات/کلمې یو ځل بیا مثال درکړم چې له پخوا منل شوي؛ خو د قاعدې په اړه یې چا فکر نه دی کړی؛ کیدای شي په دې اړه اختلاف هم له منځه لاړ شي. مثلاً: (هم هغه سې) په همغسې، (کومه سې) په کومسې، (هغه سې) په هغسې، (دغه سې) په دغسې او... معمول شوې دي.

- **په کار/پکار:** په ډېره ساده ژبه یې روښانه کوم؛ کله چې فاعل د یو کار ترسره کولو لپاره اړ وېستل کیږي یا شوی وي، نو پکار ورته لیکل کیږي. لکه: هغه ته پکار ده چې کار وکړي؛ یا پکار ده چې

لاسونه سره ورکړو. د دې لپاره چې لا زیات وپوهېږئ، نو د پکار لفظ د لازم، اړین یا اړتیا او حتمي معنا ورکوي؛ یعنې یوځای کارول یې سم دي؛ خو له دې پرته په بل هر حالت کې په کار لیکل سم دي. لکه: زما په کار کې څه کار لرې؟ یا زه مې په کار کې د چا مداخله نه منم او... دلته له ورایه ښکاره ده چې (په) یو خپلواک توک دی.

- **ځان ته/ځانته:** په لومړۍ هغې کې ځان جلا او ته جلا ځایونه او معناوې خپلوي چې د ځان لپاره د نسبت ورکولو پر مهال کارول کیږي؛ یعنې د ځان او ته کلمو موقعیتونه د خپلواکۍ له مخې بېل دي. لکه: «زه خپل ځانته بوټونه اخلم» یا «هر څوک یې ځان ته ګټي».

  خو ځانته چې د واحدې کلمې بڼه لري د جلا، یوازې، ځانګړې او تنها معنا ورکوي، چې موقعیت ته په کتو باید له هغه بل ډول سره یې په تفکیک ځکه وکارول شي چې دغلته «ته» خپلواکه نه ده. لکه: زه ځانته ناست یم، هر یو ځان ځانته کار کوي.

- **منځ ته/رامنځته:** کله چې په سر کې د (را) مختاړې ونلري، نو منځ جلا او ته جلا ځایونه او معناوې لري؛ خو که (را) یې درلود، بیا یې ګډ لیکل ځکه حتمي دي چې د واحدې کلمې بڼه غوره کوي او د یوې معنا اصطلاح ترې جوړیږي. لکه: (کښتۍ د اوبو منځ ته ورسېده)، (کښتۍ په لومړي ځل د نوح ع لخوا رامنځته شوه).

د یادولو ده، ډېری نور الفاظ او صفتونه (ستاینومونه) هم شته چې د واحدې معنا وړاندې کولو پر اساس باید ګډ ولیکل شي؛ ځکه چې اوس د قلم ځای تر ډېره کمپیوټر نیولی او د کمپیوټر په تحریر کې باید هغه الفاظ یوځای ولیکل شي چې یوه معنا لېږدوي او اړوند توکونه پکې خپلواک نه وي. لکه: بې وزله/بېوزله، بې وسه/بېوسه، غیرت من/غیرتمن، بې شکه/بېشکه، بې ساري/ بېساري او...

**د مرکبو نومونو د ځرنګوالي په اړه لنډ بحث**

د هغو مرکبو نومونو د ليکلو ځرنګوالي په اړه مو دوو ټکيو ته پام را اړوم، چې له دوو کلمو/نومونو جوړ وي:

**يو ـ** په سر کې بايد نسبتي (د) ونلري.

**دوه ـ** ګډ وليکل شي.

**۱- په سر کې بايد نسبتي (د) ونلري:** که چېرې په سر کې (د) ولري، بيا يې نوم نه، يوه داسې نامانوسه/نامعلومه جمله بللی شو چې پکې د نسبت موضوع مطرح وي. لکه: د کابل پوهنتون، د کانټينينټل هوټل، د اسيا مارکېټ او... ځکه چې يو خو له ورايه دغلته بې منطقه مالکيت ښودل شوی او بله دا چې د متن په منځ کې لوستونکی د جملې پاتې برخې ته په تمه کيږي، حال دا چې ليکوال به هغه د جملې په بڼه نه، د نوم په بڼه کارولی وي.

د دې لپاره چې هم په قاعده برابر ليکل وشي او هم پاسني اړخونه په پام کې نيول شوي وي (کابل پوهنتون، کانټينينټل هوټل، اسيا مارکېټ او...) ليکل يې سم دي. دلته يو بل يادون هم اړين دی او هغه دا چې پښتو قاعدې د دوو او ان درېو کلمو مرکب نوم هم له ياد نسبتي (د) پرته منلی دی/شي. لکه: حامد کرزی هوايي ډګر، سپين کلی جامع جومات او... خو دا چې (د حامد کرزي هوايي ډګر، د سپين کلي جامع جومات) ليکل کيږي، البته که (د) يې په سر کې راشي، نو بيا همغه د مالکيت مفهوم وړاندې کوي او د نوم له حيثيت نه يې باسي.

**۲ـ ګډ ولیکل شي:** د دوو کلمو د مرکب نوم ګډ لیکل څکه شرط دي چې لوستونکی یې مستقیماً په حیثیت/تعریف پوهیږي او د لوستلو پر مهال یې د مفهوم کره کولو لپاره نه تم کیږي. بېلګې یې په لاندې جدول کې روښانه شوي دي:

| جلا لیکل (ناسم) | ګډ لیکل (سم) | جلا لیکل (ناسم) | ګډ لیکل (سم) |
|---|---|---|---|
| لاس نیوی | لاسنیوی | توپک وال | توپکوال |
| ځان وژنه | ځانوژنه | خپل چاری | خپلچاری |
| ځان وژني | ځانوژني | روغ تون | روغتون |
| لاس وهنه | لاسوهنه | ... | ... |
| رامنځ ته | رامنځته | ... | ... |
| تګ لاره | تګلاره | | |
| کړن لاره | کړنلاره | | |

**یادښت:** ځینو کم شمېر کسانو ته یو ډول اندېښنه ور پیدا شوې چې ګواکې په (پلورنځي، خپرنځي او...) مرکبو نومونو کې د (ن) توری اضافه دی او باید پر ځای یې (پلورځی، خپور ځی) ولیکل شي، چې لیکي یې هم.

نو د دغو ښاغلیو نظر او فکر ته د درناوي ترڅنګ، مننه ترې کوم چې د پښتو ادب کره کولو او پراخولو لپاره غور او فکر کوي؛ څکه دا زموږ ټولو ګډه مسوولیت دی چې خپلو ادبیاتو ته کار وکړو؛ خو البته دا مشوره هم ورکوم چې هر نوښت او بدلون باید تر خپل حده منطق او معقولیت ولري، ګني له ګټې یې زیان ډېر دی.

راځو خپل بحث ته! د بېلګې په توګه (پلورنځی) تر بحث لاندې نيسو:
دلته د پلورـ او ځي ترمنځ د (ن) توری په کوم دليل زيات شوی او بيا ځينې ښاغلي يې د کوم دليل له مخې ترې لېرې کوي؟
د ښاغلو په دليل نه پوهېږم او نه مې هم ترې پوښتنه کړې؛ خو زه له همدغه ځايه ويلی شم چې په دې اړه کوم معقول دليل نلري او يوازې دا يې پټېيلې چې (پلور) هم صحيح او (ځی) هم، په دغه منځ کې نو د (ن) توری څه کوي؟
خدای دې وکړي چې دا بحث رانه اوږد نشي او هيلمن يم چې په لنډه توګه يې له ګرامري پېچلو اصطلاحاتو پرته په ډېره ساده ژبه درته روښانه کړم.
لومړی خو دا چې روزنتون، زېږنتون پوهنتون/پوهنځی، پلورنځی، کتنځی او ورته نور ترکيبي نومونه د هيواد په ملي ترمنالوجۍ کې ثبت شوي او د بدلېدو جرأت يې په هيڅ ډول سم نه دی.
بل مهم ټکی دا دی چې په دغو نومونو کې اړوندې قاعدې ډېر سم او منطقي قضاوت کړی؛ دا چې ځينې ورباندې سر نه خلاصوي، شايد د هغو خپله ستونزه وي، اما په دغو نومونو کې چې کوم ترکيب بڼه موندلې، باور وکړئ که په ډېرو ژبو کې يې د سلاست، معقوليت او اختصار ساری وي.
لنډ يې درته وايم، که (پلورنځی) په (پلورځی) وليکل شي، نو واحده معنا او سلاست خو يې پرېږده د (پلور او ځی) ترمنځ د اړيکې منطق يې څنګه روښانه کېدلای او څنګه نورو ته قناعت ورکولای شي؟
دا چې وايي، ولې په دغسې نومونو کې د (ن) توري ته ځای ورکړ شوی، سمه ادعا نه ده؛ ځکه چې (ن) د دغو نومونو په ترکيب کې د لومړي توک

برخه ده او لېرې کول یې نه یوازې په اړوند ترکیب کې د شته کلمو د ترکیب اړیکه له منځه وړي، بلکې اصلي او واحد مفهوم یې هم پاشل کیږي.

لکه: پلورنه، پوهنه، کتنه، روزنه، زېږېدنه، خپرېدنه، ښوونه، پالنه او... که چېرې دغه نومونه/کلمې د ځی له روستاړي سره د مرکب نوم په چوکاټ کې یوځای کړو، نو په ترتیب سره یې داسې لیکو: پلورنځی، پوهنځی، کتنځی، روزنځی/روزنتون، زېږنځی/زېږنتون، خپرنځی، ښوونځی، پالنځی او... په داسې حال کې چې پلور ځی، پوهه ځی، کتو ځی، روزل ځی/روزلو ځی، زېږېدو ځی/زېږ ځی، خپرېدو ځی/خپور ځی، ښوولو ځی، پاللو ځی او... د نوم په قالب کې ځکه نه نشي ګڼل کېدای، چې پورتني اصول پکې له منځه تللي او که فرضاً اصول له پامه وغورځوو او د نوم په توګه یې ومنو، بیا به هم بشپړ او روښانه نوم/سرلیک ځکه نه وي؛ چې په دغسې وضعیت کې د نسبتي (د) کمی پکې له ورایه ښکاریږي. لکه: پلور ځی (د پلور ځی)، پوهې ځی (د پوهې ځی)، کتو ځی (د کتو ځی)، روزلو ځی (د روزلو ځی)، زېږېدو ځی (د زېږېدو ځی)، خپرېدو ځی (د خپرېدو ځی)، ښوولو ځی (د ښوولو ځی)، پاللو ځی (د پاللو ځی).

قاعده داسې ده چې کله د تون، ځی/ځای روستاړي سره په مرکب قالب کې بله کلمه یوځای کیږي، نو له یاد روستاړي مخکې فعل باید جاري حالت خپل کړي یا هم ساده نوم وي، څو په یاد ترکیب کې د ځایېدو وړ وګرځي.

لکه: د (روزل) فعل په (روزنه) بدلیږي او بیا د (روزنتون) ترکیب جوړوي، د (پلور) کلمه په (پلورنه) بدلیږي او بیا د (پلورنځی) ترکیب جوړوي او

همدارنګه (پوهه- پوهنه/پوهنتون)، (کتل- کتنه/کتنځی)، (ویشتل- ویشتنه/ویشتنځی) او...

ډاډه یم، دلته به تاسو خامخا دا پوښتنه کوئ چې ولې د (روغتون، وسلتون، مرستون، ورکتون، کارځی، خوبځی او...نومونه) د دغې قاعدې خلاف دي؟

په هېڅ ډول د اړوندې قاعدې خلاف نه دي، مخکې یادون وشو چې د دا ډول ترکیبي نوم لومړۍ کلمه باید خامخا ساده نوم یا جاري فعل وي، چې بیا د یو مرکب نوم تشکیلولو په موخه له (تون، ځي) روستاړو سره د یوځای کېدو جوګه کېدای شي. لکه: کارځی/کارخونه، ورکتون، تلخونه، خوبځی، لیکخونه، وسلتون، مرستون او...

## د پاسني تفکیک او کره والي دوام

د دې ترڅنګ ځینې نور (خپل او پردي) اصطلاحات او الفاظ هم په پښتو کې په ناسم ډول معمول شوي چې جدي ګټل یې خورا اړین دي او په منطقي او اصولي توګه، سم هغه یې باید معیار وګرځي. لکه په لاندې ډول:

- **صورت مومي/بڼه مومي:** (صورت مومي) پردی لیکدود دی چې د پارسي (صورت می ګیرد) کټمټ ژباړه ده. په پښتو کې د جملې له مخې «بڼه مومي، کیږي **یا** ترسره کیږي»سم دي.
- **یو/یوو:** دا دواړه هم باید د لیکلو له لارې سره بېل کړو، همدې ته معیاري کېدل وایي. یو د پارسي یک او د انګریزي ون په معنا دی او یوو د یم جمع مصدر دی چې د جمع متکلم لپاره په روان او تېر جاري حالت کې او وو یوازې په تېر حالت کې کارول کیږي. لکه: موږ دواړه ورونه یوو، موږ په یو کور کې اوسېدلي یوو **یا** زه به یو کار وکړم او...

**یادښت:** په پښتو کې هغه نومونه خورا زیات دي چې په ورته/مشابه تورو لیکل کیږي؛ خو معناوې یې سره بېلې دي. دا ستونزه باید یوازې په نومونو کې پاتې شي او په فعلونو/مصدرونو کې یې تکرار یوازې زموږ بېغوري او نیمګړتیا ښیي بس.

- **قرار لري:** له پارسي راخیستل شوې اصطلاح ده، چې پښتو کې یې سمه بڼه: (شته، پروت دی/پرته ده) ټاکلی شو. همدارنګه ځینې نور مثالونه هم شته چې په ناسم ډول زموږ پر ادبیاتو راتپل کیږي. لکه: په دې صورت کې، انجامیږي، پرته له دې او... چې پارسي

هغه يې په ترتيب سره (در اين صورت، انجام می شود، بدون اين) او... البته سمه بڼه يې داسې ليکو: په دغه حالت کې، ترسره کيږي، له دې پرته او...

- **په پرتله/پرتله:** د (په پرتله) تلفظ نه يوازې بېخونده دی، بلکې د (په او پر) نسبتي تورو ترمنځ ټکر هم مفهوم او هم تلفظ ته صدمه رسوي؛ پکار ده چې يوازې پرتله وکارول شي چې بيا يې منطق هم له معنا سره سمیږي. په دې اړه پخپله هم غور او فکر کولای شئ، کېدای شي لا ښه قانع شئ.
- **ولاړ/ولاړه، لاړ/لاړه:** د دغو فعلونو هر يو يې پر خپل ځای سم دی. په پښتو کې ولاړ/ولاړه د (درېدو، انتظار) په معنا کارول کيږي او لاړ/لاړه د تلو يا تګ په معنا. لکه: زه درته ولاړ/ولاړه يم. هملته ولاړ اوسه. همدارنګه: ته لاړ/لاړه شه، زه دلته ولاړ/ولاړه يم.
- **کچه/کچ:** دا اصطلاحګانې هره يوه جلا جلا معناوې لري او نه ښايي چې د کچ پرځای کچه وکاروو. کچه د خام/خامې معنا لري او کچ معمولاً اندازې يا سطحې ته وايي. لکه: «د افغانستان په کچ اتلولي يې خپله کړه، لومړی يې کچ واخله، بيا يې جامې وګنډه» يا «دا لاره کچه ده او هغه پخه».

خو که داسې هم وليکل شي لکه: د لېسانس تر کچه يې زدکړې کړې دي. توپير نه کوي؛ ځکه چې دغلته نسبتي (ه) په پښتو ادب کې يو اصل دی او په ژبني تخفيف سره يې له کلمې سره نښتی

حیثیت خپل کړی دی. لکه: زه پرون تر کابله لاړم، تر پرونه دې څه ویل، له اسمانه را ولوېده او...

د یادولو ده چې که پاسنی مثال داسې ولیکو: د لېسانس تر کچې یې زدکړې کړې دي. سمه نه؛ ځکه چې دلته د کچې لفظ د کچه بل حالت دی او معمولاً په پښتو کې هغه کلمې چې روستی توری یې (ه) وي، د جمع حالت لپاره په (ې) بدلیږي. لکه: سپکه/سپکې، لوړه/لوړې، وینه/وینې، سترګه/سترګې او...

- **نژدې/نږدې/نزدې:** منم چې د نژدې پرتله نږدې زیات لیکل کیږي؛ خو دا چې پښتو ژبه باید له ګاونډیو ژبو سره په مشترکو تورو کې پوره او منطقي ونډه ولري، ښه دا ده چې پښتو ویونکي هم تر یو حده ممکن او منطقي نرمښت غوره کړي؛ هغه په دې معنا چې په ویلو کې د نږدې پرځای نزدې زیات تلفظ کیږي، نو ولې یې لیکل هم په نزدې ونه کړو؟ چې البته لغوي مفهوم یې هم تر هغو دوو روښانه او ورسره سم دی.
- **له بده مرغه/له نېکه مرغه:** سمه ده چې دا اصطلاحات اوس معمول شوي دي؛ خو که چېرې په اصلي بڼه ولیکل شي، د معیار په نوم یو څه ته به مو منطقي ژمنتیا ښودلې وي.

مثلاً: بدمرغي/نېکمرغي دوه عامې اصطلاحګانې دي چې د پارسي بدبختي/خوشبختي مترادفې دي؛ خو د «له بده مرغه/نېکه مرغه» لیکلو سره یې نه یوازې کلمه یا اصطلاح پر جمله بدلیږي،

بلکې د کلمو د التباس یا ورتوالي له امله مفهومي پوښتنې هم زیږوي؛ نو!

له بدمرغیه/له نېکمرغیه **یا** له بدمرغه/له نېک مرغه لیکل یې له اصلي مفهوم سره ښه اړخ لګولی شي. په دې سره به له یوې خوا د الفاظو د ورتوالي له ستونزې ووځو او بل به د کلمې اصالت هم زیان نه وي لیدلی.

- **دغه/دغو، هغه/هغو:** په پښتو کې ضمیرونه د صفت او نوم تابع وي، کله چې د هغو حالت بدلیږي، د ضمیرونو بڼه هم ورسره بدلون مومي.

لکه:(د دغه کتابونو لپاره راغلم) ناسمه او (د دغو کتابونو لپاره راغلم) جمله سمه ده. یا (د هغه خلکو) ناسمه، (د هغو خلکو) سمه ده. معنا دا چې دغه/هغه د مفرد او دغو/هغو د جمع لپاره کارول کیږي. لکه: **دغه** سړی، هغه قلم **یا** **دغو** هلکانو، هغو نجونو او...

د یادولو ده چې د دریم حاضر ښځینه څه/چا او همدارنګه په مغایره حالت کې د ښځینه مفرد څه/چا لپاره اړوند ضمیرونه داسې لیکل کیږي: دغې/ هغې لکه: د دغې کوټې دروازه نشته **یا** زه له هغې سره مینه لرم.

که چېرې ولیکو: د دغه/هغه کوټې دروازه نشته (سمه نه ده) او...

- **ښوول/ښودل:** دا دواړه هم جلا جلا مفاهیم دي. ښوول د روزلو، ور زده کولو یا درس ورکولو په مفهوم کارول کیږي؛ خو ښودل بیا

یو شی نندارې ته د ایښودو یا ښکاره کولو په مفهوم منل کیږي.
لکه: موږ ښوونکي ته ښودونکی نه شو ویلی. دغه راز ځان ښودنې ته ځان ښوونه نه شو ویلی.

- **کاروونکی/کارکوونکی:** کاروونکی او کارکوونکی هم جلا مفاهیم دي، چې لومړی هغه د وسیلې یا استعمالوونکي په معنا کارول کیږي او دویم یې د اداري ترمنالوجۍ برخه ده چې د دري ژبې د (کارمند) مترادف دی.
- **ګوندې/ګواکې/ګنې:** ګواکې او ګوندې هغه اصطلاح ګانې دي چې په تلفظ او تورو کې توپیر لري، معناوې یې هم سره متفاوتې دي او باید یوه د بلې پرځای ونه کارول شي. ګوندې معمولاً د (شاید، کېدای شي او یا په تړوله کې د اټکل او احتمال) لپاره کارول کیږي. لکه: استاد ګوندې راشي، سلیم ګوندې خدای ساتلی وي، نن ګوندې باران وشي.

خو ګواکې نیابتي او توضیحي کلمه ده چې د یو څه روښانه کولو لپاره کارول کیږي. لکه: له چلنده یې داسې بریښېده چې ګواکې هېڅ خبره نه نشته، هره خبره یې داسې کوله چې ګواکې هېڅ ملامت نه وي.

همدارنګه ګنې هم هغه اصطلاح ده چې په لیکنو کې یې عادي حیثیت خپل کړی او معمولاً د تېنګار، ګواښ او خبراوي په حالت کې کارول کیږي؛ لکه: پیسې راسره نه وې، ګنې هغه جوړه مې اخیسته. زه مې خپل حق غواړم، ګنې بیا ګیله ونکړې.

- **لور/لوری:** ځینې کسان لیکي: زه د کابل په لور روان یم، د بریا په لور مې یو ګام واخیست او... چې سم یې نه لیکي. لور او لوری جلا مفاهیم دي او پکار ده چې په متن کې د دواړو مفاهیمو اصلي بڼې د لهجې یا بې تفاوتۍ قرباني نشي. البته د پاسنیو جملو سمه بڼه داسې ده: زه د کابل په لوري روان یم، د بریا په لوري مې یو ګام واخیست.
- **ترسره کېدل/سرته رسېدل:** ترسره کېدل د کار کولو یا کېدلو په مفهوم یوه اصطلاح ده او سرته رسېدل د کار انجام یا پای ته د رسېدو په معنا لیکل کیږي. لکه: زه خپله دنده ترسره کوم، زموږ رییس د کار په ترسره کېدا زیات خوشحالیږي او یاده پروژه یوه میاشت پس سر ته رسیږي، چې کله مې زدکړې سرته ورسېدې او.... یعنې که لږ نور هم دا موضوع روښانه کړو، نو ویلای شو چې ترسره کېدل د یو څه/کار په جریان یا لړ کې کارول کیږي او سرته رسېدل د یو څه/کار بشپړېدا یا پای ته رسېدا لپاره کارول کیږي.
- **لر و بر/لر او بر:** دا او نور لکه رنګ و بنګ، تېر و بېر، سر و مال او... پارسي ترکیب دی چې په پښتو کې د (او) پرځای د (و) کارول نه اصل لري او نه په قاعده برابر دي؛ ځکه دلته د ویلو/لهجې تابعیت شوی او دا کار سم نه بریښي. که چېرې سم وي، نو په ټولو مواردو کې ولې نه رعایت کیږي؟

لکه: لوړه او تنده، مړی او ژوندی، خوله او پزه او...

دا سمه ده چې په خوله يوازې (واو) تلفظ کيږي، نو دا خو د دې معنا نلري چې موږ دې خپل ليکنيز معيار او اصل له پامه وغورځوو، څوک يې چې څنگه وايي، مخه يې خلاصه ده؛ خو اصولو ته دې زيان نه اړوي.

- **ځمکه/زمکه:** ځمکه (ناسمه) او زمکه (سمه)ده؛ **دلايل يې دا دي** چې يو خو به له هغه ناسم مشهور او معمول څخه راوگرځو، کوم چې په پښتو کې د (ځ) توری د (ز) توري پرځای کارول شوی يا کيږي؛ لکه: (ځموږ، ځما، يواځې، ځلمی/ځلما، ځمکه او...) او بل دا چې په اوستايي ژبه کې (زميک) او همدارنگه له عربي راديخوا په نورو اکثره ژبو کې په (ز) ليکل کيږي، چې په پښتو کې (زمکه) نه يوازې سمون ورسره خوري، بلکې منطقي هم ده.
- **په اړوند/په اړه:** په ځينو مواردو کې د (په اړه) پرځای (په اړوند) ليکل کيږي، چې دا کارول سم نه دي.
  لکه: (زه د مديريت په اړوند کتاب ليکم). البته سمه بڼه يې په دوه ډوله ليکلی شو: يو ـ زه د مديريت اړوند کتاب ليکم، دويم ـ زه د مديريت په اړه کتاب ليکم.
- **سوتره/ستره:** دا دوه جلا مفاهيم دي او بايد جلا وليکل شي؛ خو دا چې په ځينو مواردو کې د (سوتره) پرځای (ستره) ليکل کيږي، شايد لامل يې لهجه وي؛ خو دلته هدف دا دی چې سم نه ليکل کيږي. (سوتره) ځانته او (ستره) ځانته معنا لري؛ يعنې لومړنۍ

کلمه د پاک/پاکه او دویمه هغه یې د لویې/غټې معنا لیږدوي. همدارنګه ځینې نورې ورته کلمې هم شته چې په لیکلو کې یې دقت او تفکیک پکار دی. لکه: چوپ/چپ، روسته/ورسته او...

- **وا یې خله/وایخله:** په دغه ردیف کې خورا زیات اصطلاحات شته، چې له اختلاف سره سره هم په نښتي او هم په جلا ډول لیکل کیږي؛ خو تر ټولو غوره دا ده چې ورته اصطلاحات باید یوځای (نښتي) ولیکل شي. لکه: وا یې نه خلې/واینخلې، وا یې خیست/وایخیست، وایې نه خیست/واینخیست، وایې ستوه/وایستوه او...
- **ولیکه/ولیک:** دا هم دوه جلا مفاهیم دي؛ چې لومړی ولیکه امریه لفظ دی او د مخاطب لپاره مستقیم کارول کیږي؛ خو ولیک باید یوازې په تېر حالت کې د غایب یا دریم شخص لپاره وکارول شي. البته چې په ویلو کې به ولیکه تلفظ شي؛ خو په لیکنیز توپیر یې باید سترګې پټې نشي.

مثلاً لیکو: سبحان یو کتاب ولیک، همدا جمله په وینا کې داسې ویلی شو: سبحان یو کتاب ولیکه؛ دا ځکه چې په وینا او لهجه کې کوم محدویت شتون نلري.

خو که همدغه کلمه/فعل په دواړو جملو کې په امریه بڼه ولیکو، بیا نو ښکاره ده چې زموږ په لیکنیز قاموس کې د الفاظو پر قحطۍ دلالت کولای شي.

دا منم چې په لومړي ځل لوستلو کې به یې د نابلدۍ احساس وشي او د دې نابلدۍ لوی لامل به همدا وي چې د پښتو ادبیاتو د لیکنیزو توکو د بشپړولو لپاره تر ډېره پښتو شاعرۍ ته د سرچینې په توګه مراجعه شوې او زما په اند په هره برخه کې دغې مراجعې سمه پایله نه ده وړاندې کړې او نه هم د ګرامر لپاره د منبع په توګه د شعر کارول سم دي؛ ځکه چې د شاعر او لیکوال پوهه او لیکنیزه ژبه هم په ګرامري او هم په معیاري برخو کې خورا سره لېرې دي او هم د نثر او نظم لیکنیز اصول سره په ټکر کې دي؛ یعنې په نظم کې د ګرامر پرځای قافیه، ردیف او په ټوله کې د کلام/مفهوم وزن او موسیقیت په پام کې نیول کیږي؛ خو په نثر کې بیا دا موضوع بالعکس ده.

په هر حال، د وخت په تېرېدو سره به دا هر څه هله معیاري شي چې موږ د لهجې یا وینا مطابق لیکل ونه کړو.

کله چې د مفرد غایب نارینه نوم لپاره له نورو مصدرونو/فعلونو لکه: ولوېده/ولوېدو، واوښته/واوښتو، پاڅېده/پاڅېدو، وغورځېده/وغورځېدو او نورو څخه دمعیار له مخې د (ه) او (و) توري لېرې کولای شو او لیکو: ولوېد، واوښت، پاڅېد، وغورځېد؛ نو د (ولیک)یا ورته نور لفظونه/فعلونه لکه:

(وچیچه/وچیچ، نومېده/نومېد، بوته/بوت، وکوته(وکته)/وکوت او...) په کوم دلیل مستثنا پاتې کېدلای شي؟

دلته د مفرد غایب نارینه نوم لپاره سم او ناسم فعلونه/مصدرونه د جدول له لاري روښانه کوو.

| ناسم (لهجه) | سم (معیار) | | بېلګه |
|---|---|---|---|
| ښوده/وښوده | ښود/وښود | | (ناسمه) کله چې ولسمشر خپل غبرګون ښوده/وښوده. |
| | | | (سمه) کله چې ولسمشر خپل غبرګون ښود/وښود. |
| لاره | درلود | | (ناسمه) نوید په سوله کې مهم رول لاره. |
| | | | (سمه) نوید په سوله کې مهم رول درلود. |
| لرلو/ درلودلو | درلود | | (ناسمه) نوید په سوله کې مهم رول لرلو/درلودلو. |
| | | | (سمه) نوید په سوله کې مهم رول درلود. |
| وخته/ وختو | وخوت | | (ناسمه) خلیل غره ته وخته/وختو. |
| | | | (سمه) خلیل غره ته وخوت. |
| راتللو/ راتلو | راته | | (ناسمه) کریم به هره ورځ له کلي مکتب ته راتللو/راتلو. |
| | | | (سمه) کریم به هره ورځ له کلي مکتب ته راته. |
| وخوړو | وخوړ | | (ناسمه) نن مې کابل کې کباب وخوړو. |
| | | | (سمه) نن مې کابل کې کباب وخوړ. |
| راغلو | راغی | | (ناسمه) استاد نن ناوخته راغلو. |
| | | | (سمه) استاد نن ناوخته راغی. |
| وکړو/ وکړلو | وکړ | | (ناسمه) ما خپل کار وکړو/وکړلو. |
| | | | (سمه) ما خپل کار وکړ. |
| ورکړو | ورکړ | | (ناسمه) مکۍ ته مې د کیمیا کتاب ورکړو. |
| | | | (سمه) مکۍ ته مې د کیمیا کتاب ورکړ. |
| متکلم | راغلمه | راغلم | (ناسمه) پرون له کابله راغلمه. |
| | | | (سمه) پرون له کابله راغلم. |
| | تلمه | تلم | (ناسمه) هره ورځ به پوهنتون ته تلمه. |
| | | | (سمه) هره ورځ به پوهنتون ته تلم. |
| خته/ ختو | خوت | | (ناسمه) زرګی هر سهار غره ته خته/ختو. |
| | | | (سمه) زرګی هر سهار غره ته خوت |
| بوته/ بوتو/ بوتلو | بوت | | (سمه) موټر یې له ځان سره بوته/بوتو/بوتلو. |

| | | |
|---|---|---|
| | | (ناسمه) موټر یې له ځان سره بوت. |
| نومېده/ نومېدو | نومېد/نومېده | (ناسمه) د هغې پلار ګل محمد نومېده/نومېدو. |
| | | (سمه) د هغې پلار ګل محمد نومېد. |
| وکته/ وکتو | وکوت | (ناسمه) کله مې چې کتاب وکته/وکتو. |
| | | (سمه) کله مې چې کتاب وکوت. |
| پریوته/ پرېوتو | پرېوت | (ناسمه)سلیم په خپل ځای کې پریوته/پریوتو. |
| | | (سمه) سلیم په خپل ځای کې پرېوت. |
| ورسېده/ ورسېدو | ورسېد | (ناسمه) جمال نن جلال آباد ته ورسېده/ را ورسیدو. |
| | | (سمه) جمال نن جلال آباد ته ورسېد. |
| وغورځېده/ وغورځېدو | وغورځېد | (ناسمه) له بام نه/بامه لرګی وغورځېده/وغورځېدو. |
| | | (سمه) له بام نه/بامه لرګی وغورځېد. |
| تللو/ تلو | ته | (ناسمه) درویش په دې لاره کور ته تلو/تلوو. |
| | | (سمه) دروېش په دې لاره کور ته ته. |
| کېده/ کېدو | کېد | (ناسمه) نن خو ریحان زیات خوږ خوږ کېده/کېدو. |
| | | (سمه) نن خو ریحان زیات خوږ خوږ کېد. |
| واخیسته/واخیستو | واخیست | (ناسمه) چې کله به مې قلم واخیسته/واخیستو. |
| | | (سمه) چې کله به مې قلم واخیست. |

دغه راز د ورته نورو فعلونو په پای کې چې د (و) یا (ه) توری کارېل کیږي، بېځایه دي؛ پکار ده چې د پاسنیو مثالونو له مخې اړوند قاعده په پام کې ونیول شي.
**یادښت:** په لومړي (ناسم) ردیف کې چې کوم فعلونه (ناسم) ګڼل شوي، هغه یوازې د ټاکلې محتوا او موقعیت له مخې دي، ګنې په اصل کې هر فعل پر خپل ځای سم دی؛ یعنې هغه فعلونه چې په پای کې په (و) توري بشپړیږي، هغه د جمع متکلم لپاره او هغه فعلونه چې په (ه) توري بشپړیږي، هغه د ښځینه نومونو لپاره سم بلل کیږي.

په همدغه لړ کې باید یو بل مهم یادون هم وکړم او هغه دا چې په پښتو ادب کې د پارسي ژبې د (مند) روستاړی ځایول سم نه دي. لکه: قدرتمند، عزتمند، ثروتمند، غیرتمند او... .
هره ژبه د خپلو الفاظو په درلودو سره د بلې ژبې یوازې محدود الفاظ منلی او جذبولی شي؛ خو قاعده یې نشي منلی؛ ځکه چې هغه په خپل جوړښت

کې اړونده قاعده لري او پر همدغه اساس شته اصول یې د بلې قاعدې منلو ته نه پرېږدي. البته ځینې استثناوې شته چې د ملي ترمنالوژۍ په چوکاټ یا عامه ژبه کې دود شوي؛ خو د قاعدو ټکر یې نه دی رامنځته کړی. لکه: لښکرګاه، عیدګاه او...

په پښتو کې د پارسي (مند) روستاړي مترادف، (من) دی چې بلها کلمې یې په دغه چوکاټ کې منلي او راپېژندلي دي. د بېلګې په ډول: موږ په پښتو کې برخمن، پتمن، ساتنمن، ډګرمن، ګیلمن، هیلمن، عقلمن او... لرو؛ چې پاسني مثالونه هم په همدغه چوکاټ کې له کوم خنډ پرته په اسانه ځايېدلی شي. لکه: قدرتمن، عزتمن، ثروتمن، غیرتمن، کارمن او...

په دې اړه یو بل مهم ټکی چې باید یاد شي، هغه د ښځینه او جمع مخاطب/غایب لپاره د دغو صفتونو کارول دي، چې په دې برخه کې د پارسي قاعدې منلو ته پښتو ژبه اصلاً تابع کېدلای نشي. لکه: قدرتمنه، عزتمنه، هیلمنه، ثروتمنه، غیرتمنه، برخمنه، پتمنه، ساتنمنه، ګیلمنه **یا:** قدرتمنو، عزتمنو، ثروتمنو، غیرتمنو، برخمنو، پتمنو او...

چې عزتمنده/عزتمندو، هیلمنده/هیلمندو، ثروتمنده/ثروتمندو، برخمنده/برخمندو، پتمنده/پتمندو، ساتنمنده/ساتنمندو، ګیلمنده/ګیلمندو او... لیکل یې سم نه دي.

ځینې نور فعلونه او نومونه هم شته چې په لیکلو کې یې اختلاف دی او ان ناسم ډولونه یې عام شوي دي، البته دلته هم د لهجې نفوذ لامل شوی دی.

لکه:

| ناسم فعلونه/نومونه | سم نومونه/فعلونه |
|---|---|
| اولس | ولس |
| اوسپنه | وسپنه |
| اوږه | ووږه |
| ایږدم | ږدم |
| انږور | نږور |
| انجلۍ | نجلۍ |
| اودرېدل | درېدل |
| اوړی/اوړي | ووړی/ووړي (دوبی/دوبي) |

همدرانګه ځيني نور فعلونه هم شته چې له دوو متفاوتو معناوو سره په يو شان ليکل کيږي او دا سم تعقيب نه دی. لکه: (اورېدل) چې (په غوږونو د اورېدو معنا لري)؛ خو په زياتره مواردو کې د (ورېدل، ورښت يا باران ورېدل) په معنا ليکل کيږي؛ دغه راز (اوږه) د (اوښتل) په معنا ځانته او (ووږه) د (ډوډۍ پخېدو خام توکی) ځانته مفهوم دی؛ خو د دواړو لپاره يوازې (اوږه) کارول کيږي چې سم نه دي او...

**د ورته معنا لرونکو فعلونو، نومونو او اصطلاحاتو د کارېدا موقعيت**

همدا به بس وي چې په پښتو کې بلها داسې کلمې/نومونه شته چې توري يې يو شان دي؛ خو د غږ په محضې بدلېدا سره يې په معنا کې توپير رامنځته کيدلی شي؛ چې دا پخپله يو سرخوږی دی. لکه: لور، توره، سره، تل، تياره، خواره او...

خو که چېرې په ارونو کې د ګوتې وهلو جرأت نشو کولای، د تعريف او ترتيب اصول خو يې جوړولی او سمولی شو.

په ليکنيز بهير کې ځينې کسان د نوم او فعل په تفکيک کې پاتې راځي او له همدې کبله د دواړو ترمنځ په توپير کې بيخي بې پروايي ښيي، چې دا کار يې لويه تېروتنه ده. دا چې په پښتو کې اړوند نومونه او فعلونه ثنګه سره جلا کيږي، لاندې پرې بحث کوو:

سرښندل/سرښندنه، غورځېدل/غورځېدنه، پالل/پالنه، ساتل/ساتنه، ګمارل/ګمارنه، ستايل/ستاينه، غندل/غندنه، سنجول/سنجونه، اوبه لګول/اوبه لګونه، ځورول/ځورونه او... چې دا ټول د (ل) توري سره فعل او د (نه) روستاړي سره پر نوم/اصطلاح بدليږي.

په همدې اړه ځينې منل شوي مثالونه ورکولای شو چې اصطلاح يا نوم يې جلا او فعل يې په جلا ډول ليکل کيږي. لکه: لمرخاته (اصطلاح) او لمرختل (فعل)، کاته (اصطلاح) او کتل (فعل)، خواړه (نوم) او خوړل (فعل)، لمر پرېواته (اصطلاح) او لمر پرېوتل (فعل) او... .

خو دا چې ولې مې دا موضوع مطرح کړه او ثنګه مې په ياد شوه؟ دليل يې دا دی:

يوه ورځ مې د يو درسي کتاب نوم ته پام شو چې پرې ليکلي ول: (اوبه لګول)؛ نو خدای شته چې د دوو دلايلو له مخې مې خوښ نه شو. يو دا چې په قاعده برابر نه و او له غور او پوهې پرته په نامسلکي توګه پښتو ته ژباړل شوی و، دويم دا چې د ليک رنګ يې هم د پوښتۍ (بکګرونډ) له رنګ سره سمه ډېره نه لګوله.

په هر حال، شايد دا موضوع ځينو ته عادي ښکاره شي؛ خو که دوی لږ دقت او غور پرې وکړي، تر ما به يې هم جدي وبولي. په دې معنا چې د علمي، په تېره د درسي کتابونو لپاره د سرليک/عنوان غوره کولو عمده اصل دا دی چې بايد يوازې د نوم چوکاټ او قاعدې ته په پام سره غوره شي او دغلته هم د (اوبه لګول) پرځای (اوبه لګونه) سم دی.

دلته د ځينو علمي او درسي کتابونو نومونه د بېلګې په ډول يادولی شو.

لکه: اروا پوهنه، انسان پېژندنه، امتعه پېژندنه، ځږځای پوهنه، ادب پوهنه، همپالنه او... چې البته اروا پوهېدل، انسان پېژندل، امتعه پېژندل، ځږځای پوهېدل، ادب پوهېدل، هم پالل او... د نوم/اصطلاح له دايرې وځي او ديوې ناڅرګنده جملې بڼه خپلوي.

**په ځينو لهجو کې ورک معياري ليکدود**

دلته دغې خبرې معيار ته لوی زيان اړولی چې وايي: (پښتو چې څنګه ويل کيږي، همغسې ليکل کيږي). دا خبره مې ځکه بيا تکرار کړه چې د پاسنۍ ادعا له مخې هر چا ته خپله لهجه معقوله او سمه برېښي او چې څنګه غږيږي، همغسې يې ليکي هم. همدا ده چې د واحد ليکدود اصلي بڼه پکې له منځه تللې او ځي.

دلته پر څو بېلګو رڼا اچوو:

- **و، وه، ول،وم، وو، وې، وئ:** دا هر مصدر پر خپل ځای سم او معياري دی؛ خو دلته اصلي خبره د (وو) او (ول) ترمنځ د اختلاف پر سر ده، چې ځينې کسان وو د ول پرځای سم بولي او ځينې بيا ول پرخپل ځای او وو پرخپل ځای سم ګڼي؛ البته زه هم له دويمې ډلې سره موافق يم؛ ځکه چې د وو مصدر په تېر حالت کې يوازې د جمع متکلم لپاره راځي. لکه: موږ ملګري وو. موږ مېلې ته تللي وو؛ خو په عين حالت کې د دريم لوري/جمع غايب لپاره يې بيا داسې کاروو: هغوی ملګري ول. هغوی مېلې ته تللي ول.

د يادولو ده چې کله موږ د نورو مصدرونو/فعلونو په پای کې د (ل) کارولو ته قايل يوو، لکه (شول، کړل، کول او...) بيا ولې دلته ورسره ستونزه لرو؟

- **شوو، شويو:** دا مصدرونه هم يو د بل ځای نشي نيولی؛ هر يو خپل ځای او معنا لري. شوو د جمع متکلم لپاره او شويو د جمع غايب لپاره ليکل کېږي. لکه: موږ هسې پکې ښکېل شوو **يا** د نيول شويو کسانو توکي واخيستل شول.
- **ځنې/ځينې:** دا دواړه بېل مفاهيم دي؛ د ځنې لفظ لهجه ده او د (ترې، ځخه او نه) په معنا کارول کېږي؛ خو ځينې د (بعضې، يو شمېر، يو څو) معنا وړاندې کوي.

- **ورسته، وروسته/روسته:** ځينې کسان روسته په ورسته ليکي، چې سم يې نه ليکي؛ ورسته د وروست مونث مترادف مفهوم دی، چې د خوسا او پوده په معنا مطرح کيږي؛ خو وروسته د عربي (بعد) او پارسي (پس) په معنا کارول کيږي، چې البته په دې روستيو کې روسته هغه يې يو څه په زړه پورې او معقول بړېښبدلی او د زياترو لخوا رعايت کيږي هم، په تېره کوزه پښتونخوا کې؛ همدارنګه (روستاړی) لفظ هم په دې هکله ښه ثبوت دی.
- **دې/دغه:** د دغو دوو ضميرونو په کارولو کې سم پام نه کيږي، ان ويلی شم چې په اکثره مواردو کې موقعيت ته په نه کتو د (دې) ضمير زيات کارول کيږي. خو د دې لپاره چې دغه بحث اوږد نشي، تفکيک يې په مثال کې روښانه کوم. لکه: زه د دې پوهنتون محصل يم ( ناسمه) او زه د دغه پوهنتون محصل يم (سمه جمله ده). **يا** زه د دغه مجلې مسوول مدير يم (ناسمه) او زه د دې مجلې مسوول مدير يم (سمه جمله ده).
- **سربېره/برسېره:** دواړه له جلا معناوو سره جلا اصطلاحات دي، چې (سربېره) د علاوه او (برسېره) د څرګند، ښکاره او سر ته راپورته کېدا په معنا کارول کيږي. په مثالونو کې يې داسې روښانه کوو: سربېره پر دې نور مسووليتونه هم لرم، د زدکړو سربېره سپورټ هم کوم **يا** اصلي ټکی يې اوس رابرسېره کړ، جامې مې برسېره کښېږده او...

- **بدې شي/بد ایسي:** بد ایسي یا بد ایسېدل له بد حس کولو/کېدلو څخه اخیستل شوې اصطلاح ده او همدا (بد ایسېدل) یې ځکه سمه ده چې مفهومي قیاس یې خورا منطقي دي؛ خو د (بدې شي) ترکیب نه په پښتو قاعده برابر دی او نه عام دود لري.
- **رامینځته/رامنځته:** (رامینځته) ناسمه او (رامنځته) سمه ده.
- **ناجوړ/ناجوړه، ناروغ/ناروغه:** ناجوړ/ناروغ یوازې د نارینه لپاره د کارېدو وړ دي او ناجوړه/ناروغه د ښځینه لپاره. لکه: (زمان ناجوړ/ناروغ دی، زه سخت ناجوړ/ناروغ وم). همدارنګه (زلیخا ناجوړه/ناروغه ده، نن زه ناجوړه/ناروغه یم).
- **یوه/یو:** (یوه) د ښځینه او (یو) د نارینه نوم لپاره کارول کیږي، له همدې مخې د لیکلو معیار ته پام اړین دی او د نوم یا ضمیر له مخې باید ورته صفت یا د شمېر واحد وکارول شي. مثلاً: یوه سړي راته وویل (ناسمه) او یو سړي راته وویل (سمه جمله ده) یا یوه کار ته مې زړه کړی دی (ناسمه) او یو کار ته مې زړه کړی دی (سمه جمله ده).

دا چې لوستونکی یې څنګه او په کومه لهجه لولي، اختیار یې خپل دی؛ خو په لیکلو کې باید له اصولو ونه وځي.

زموږ دا بحث خورا په زړه پورې شو، غواړم په ځينو نويو خبرو يې لا پسې تود کړم او هغه دا چې ځينې پارسي کلمې چې په (ش) توري ختميږي، پښتو مترادفې کلمې يې په (ښت/ښت) بشپړيږي؛ لکه:

| پارسي | پښتو | پارسي | پښتو |
|---|---|---|---|
| **ارزش** | ارزښت | جنبش | خوځښت |
| **خارش** | خارښت | افزايش | ډېرښت |
| **بارش** | ورښت | ازمايش | ازمايښت/ ازمېښت |
| **ويرايش** | سمښت | گنجايش | ځايښت |
| **بالش/بالشت** | بالښت | پيدايش | پيدايښت |
| **نالش** | نالښت | بندش | بندښت |
| **سفارش** | سپارښت | کاهش | کمښت |
| **ورزش** | تکړښت | نرمش | نرمښت |
| **پيرايش** | ښاوښت | پذيرش | منښت |
| ... | ... | ... | ... |

| فاعل (پارسي) | فاعل (پښتو) |
|---|---|
| ويرايشگر | سمښتګر |
| سفارشگر | سپارښتګر |
| پيرايشگر | ښاوښتګر |
| ... | ... |

داسې نه ده چې په (ښت) روستاړي ختمېدونکې کلمې يوازې د پارسي الفاظو پر وړاندې مترادف حيثيت لري، نه؛ دا رديف په پښتو ادبياتو کې زوړ او اصلي حيثيت لري چې ګڼ نومونه او کلمې پکې رانغښتې دي. لکه: مړښت، زړښت، سړښت، سکښت، بندښت، پايښت، لګښت، زښت، کښت، غرغښت، پښت او...

کيدای شي په پاسني جدول کې ځينې کلمې لوستونکو ته نااشنا او نوې وي؛ خو زما په ګمان د دې لپاره به ورته نوې وي چې دوی خامخا په پښتو ژبه کې يوازې د شعر او کيسې مطالعه او ليکنه کړې او چې کله يې علمي يا درسي کتابونو ته مخه شوې، نو هغه په انګلش، عربي او تر ډېره پارسي ژبه کې دي؛ سمه ده چې په دغو روستيو کې څه ناڅه علمي کتابونو ته مخه شوې، خو که واقعيت ووايم، زياتره يې په ګوډه ماته پښتو ژباړل شوي دي او ددغې نيمګړتيا يوازنی دليل، په پښتو کې د علمي اصطلاحاتو کمی يا نشتوالی بللی شو او د دغه نشتوالي دليل بيا، په علمي برخه کې د پښتو کتابونو نه ليکل يا نشتون دی او بس.

د اعتراف په توګه يې بايد ووايم چې يو پر بل پړه نشو اچولی، که تا بېغوري کړې، ما يې د اصلاح جرأت نه دی کړی، که هغه مجبور و؛ خو هغه بل په دې اړه له سره د مسووليت احساس نه دی کړی، چې همدغه لامل د علم په ډګر کې د الفاظو له ظاهري قحطۍ سره مخ کړي يوو.

راځئ د پاسنيو ځينو نويو کلمو په اړه يو لنډ او واضح بحث وکړو او هغه دا چې په پښتو کې د پوهې، مسلک، ټولنې او ان دولتي رتبې په برخو کې د بېلابېلو مفاهيمو لپاره يوازې يوه د (سمون) کلمه کارول کيږي؛ لکه:

(برابري، مطابقت، اصلاح، تنظیم/نظم، ایډیټ، ترتیب او... لپاره) چې البته دغه ټولې کلمې له خپلو مختلفو معناوو، پیغامونو او موقعیتونو سره د (سمون) کلمې په جوړښت کې په داسې ډول ژباړل کیږي یا بیانیږي چې د جملې محتوا یې خامخا له بلې هغې سره توپیر لري؛ همدلته ده چې که موږ په دې برخه کې د الفاظو له قحطۍ پرته بل دلیل ونیسو، نو یوازې ځان به مو تېر ایستلی وي، نه نور.

د دې لپاره چې هم پښتو ژبه تلپاتې وي او هم د علم، ټکنالوجۍ او په ټوله کې د مفاهیمو له چټکې پراختیا سره خپل شتون پراخ کړي، نو په دې اړه باید له سنتي او کلاسیک ذهنیت څخه فکرونه او قلمونه را واپستل شي او په دې خبره نور سرونه ونه خوږوو، چې ګواکې دا کلمه/اصطلاح په پښتو کې اصل لري یا یې نلري؟ ځکه چې له نن سره د شلو، پنځوسو، سلو او زرو کالو وړاندې علم، تخنیک او ان ژبه دومره توپیر لري، لکه زمکه او اسمان.

خو له دغې چټکې پراختیا سره د چټک تګ جرأت باید په منطقي ډول د شته ادب او معیار له مخې وشي، ګنې ښایي له ګټې یې زیان ډېر شي.

**سموالی، سمون، سمونه، سمښت، سمبالښت:** په ټوله کې دا هره اصطلاح له (سم/سمه) کلمې نه سرچینه اخلي چې د یو شي سمېدو، برابرېدو او جوړېدو معنا ورکوي؛ خو البته دغه سموالی باید د ځانګو په اساس تجزیه شي؛ ځکه چې اوسنی ژوند پنځوس کاله پخوانی ژوند نه دی، یا هغه څو کاله پخوانی علم او تخنیک نه دی چې په محضې څو کلمو او جملو کې راټول شي، اوس که نړۍ هرڅومره راتنګه شوې، همغومره په کوڅو او لارو

ويشل شوې هم ده او دا هر څه د نړۍ په کچ د علم او ورسره جوخت د ادبياتو د پراختيا برکت او زحمت دی.

نو د دې لپاره چې پښتو هم د خپلې بقا او پرمختگ لپاره د نړۍ په ادبياتو کې خپل سر جيگ کړی وي، نو د تنگ نظرۍ او خپلچارۍ له ماحول نه د راوتلو جرأت ته سخته اړتيا ده.

د کومې ټولنې د هرې برخې او هر مفهوم لپاره چې ځانگړې لفظي ادبيات بېل شوي وي، له شک پرته به هلته د اړوندې ژبې ويونکي او زدکوونکي د اصطلاحاتو له پېچلتياوو، ستونزو او يا قحطۍ سره مخ نه وي.

که چېرې موږ د علومو، مسلکونو او نورو برخو پر تجزيه او پراختيا باور لرو، بيا نو د گڼو مفاهيمو لپاره د يوې اصطلاح کارول څه معنا؟ مثلاً د هر مفهوم لپاره يوازې د (سمون) کلمې په کارولو بايد بسنه ونشي؛ ځکه ورځ تر بلې د علومو، کسبونو، سامانونو او ورسره جوخت د ژبو لمنې پراخيږي؛ خو که موږ لا هم يوازې څو محدودو او زړو کلمو ته کښېنو، دا به زموږ زياته بېغوري او تفريطي چلند وي؛ پکار ده چې د مفاهيمو گڼوالي ته په کتو، پښتو هم په معقول او منطقي ډول پر گڼو الفاظو او اصطلاحاتو مالامال کړو.

په دې اړه دا بحث د (سموالي، سمون، سمونې/سمېدنې، سمښت، سمبالښت، ښاوښت) اصطلاحاتو په روښانه کولو سره راټولوو:

- **سموالی:** د نظم او ترتيب مترادفه کلمه ده؛ چې د کارونې ځای يا مورد يې داسې مشخص کيږي: (د کتارونو سموالی زما مسوولیت

دی/په چارو کې ډېر سموالی راغلی او...) یعنې په ټوله کې د یوې ټولګې د نظام جوړولو او سمولو لپاره کارول کیږي.

- **سمون:** د برابري او مطابقت مترادفه کلمه ده چې د ورتوالي/یوشان والي معنا ورکوي. لکه: (ستا څهره ورسره سمون خوري **یا د** هغه نظر او ستا نظر سره سمون لري او...).
- **سمونه:** معمولاً د اصلاح او ښه والي په معنا کارول کیږي. لکه: (په ټولنه کې باید سمونه وشي، د هرې سمونې تر شا د سم انسان لاس وي او...) یعنې په ټوله کې پر اخلاقي اصولو او معیارونو پورې تړاو مومي.
- **سمښت:** د انګلش (Edit)، د عربي (تصحیح) او د پارسي (ویرایش) مترادفه کلمه ده. لکه: (د پښتو سمښت یې زه کوم، د دې مجلې سمښتګر هغه دی او...). البته که د اېډیټ لپاره د سمون یا سمونې کلمه کارول کیږي، هغه به د پاسنۍ توضیح له مخې سمه نه وي.
- **سمبالښت:** لکه څنګه چې د مجهز لپاره سمبال کاروو، د تجهیز لپاره سمبالښت کارولی شو. لکه: (د ملي پوځ د سمبالښت لپاره پر نوي پلان کار روان دی، په نویو سامان آلاتو د روغتون سمبالښت زیات لګښت غواړي او...).
- **ښاوښت:** د انګلش (Decoration) او پارسي (پیرایش) مترادفه کلمه ده، دا چې څوک یې ورسره د سمون لپاره یا جرأت نه کوي او یا یې ورته پام نه دی کړی، بېل بحث دی؛ خو په پښتو کې د

(بڼې، بڼاو، بڼاوېدل) الفاظ تیار شته او د دې لپاره چې اصطلاح ته د فعل پرځای مترادفه اصطلاح ولرو، همدا بڼاوښت بیخي منطقي او پرځای کلمه ده.

**همدارنګه:** یادون، یادونه، یادښت اصطلاحات هم باید سره بېل شي؛ ځکه هره اصطلاح ځانګړی مفهوم دی او د ځانګړي موقعیت/مورد مشخصول یې اړین دي. **لکه:**

یادون(یادول): Reminding **یا** یادآوری

یادونه (خاطرې): Reminiscences **یا** خاطره ها (چې مفرد هغه یې یاد/خاطره دی).

یادښت(نوټ): Memo/Note **یا** یادداشت

**ځینې پارسي کلمې/اصطلاحات هم شته چې په (ش) ختمیږي؛ خو په پښتو کې مترادفې هغه یې په (نه) بشپړیږي، لکه:**

| پارسي | پښتو | پارسي | پښتو |
|---|---|---|---|
| تشویش | اندېښنه | پرسش | پوښتنه |
| بخشش | بخښنه | درخشش | ځلېدنه |
| اسایش | هوساینه | نکوهش | غندنه |
| سنجش | سنجونه | پژوهش | څېړنه |
| رنجش | رنځېدنه | ربایش | تښتونه |
| شمارش | شمېرنه | ستایش | ستاینه |
| اموزش | ښوونه | ... | ... |

**په پښتو کې د عربي او انګریزي کلمو/اصطلاحاتو د نفوذ څرنګوالی**

په پښتو کې هم لکه د نورو ژبو غوندې پردي اصطلاحات او الفاظ نفوذ کړی چې دا یو معمول دی او هیڅ ژبه له دغه معمول نه ځان خوندي نشي ساتلی؛ خو دلته زموږ د بحث اړوند ټکی د دغه نفوذ څرنګوالی دی چې آیا د بلې ژبې کلمې/اصطلاحات لکه څنګه چې دي همغسې راجذب شي؟ یا که لومړی د جذبونکې ژبې د ادبیاتو له فلتر نه وځي او بیا په اړوندو ادبیاتو کې ورته ځای ورکړ شي؟

فکر کوم تر اوسه دغې برخې ته کوم واحد معیار او ځانګړي اصول نه دي ټاکل شوي؛ ځکه خو دا چاره په ځانځاني ډول روانه ده چې کاش د یو ټولیز معیار په شتون کې ترسره کېدلای.

موږ دلته په ځینو مشخصو عربي کلماتو بحث کوو چې لومړی د یو خاص منطق له مخې د سلیقوي ادب له فلتر نه وېستل کیږي او بیا په لیکنیز ادب کې ورته له ځای ورکولو روسته راڅرګندیږي. لکه: معنی/مانا، یعنې/یانې، معلومات/مالومات، صحیح/سهي او... چې بیخي د بڼې په بدلېدو سره لیکل کیږي او دغلته د مفهوم بدلېدو امکان هم زیات دی.

البته له دغه کار سره مثبت او منفي نظرونه هم په موازي ډول بدرګه کیږي؛ خو په عین وخت کې د انګریزي کلمو فلتر کېدا ته یا د چا پام نه دی او که وي هم، نو په اړه یې بېغوري کوي؛ ځکه چې د هغو ظاهري بڼه لومړی په پارسي ژبه (ایران) کې بدله شوې او روسته بیا د ژبني او فرهنګي تیري له لارې پښتو ته رانوتي دي.

لکه: انګليسي/انګلش، فرانسه/فرانس، کميسيون/کمېشن، کنوانسيون/کانوېنشن، اپراسيون/اپرېشن، اپوزيسيون/اپوزېشن او...

زما په اند دا نامتوازن حالت هومره ښه نه ايسي، لکه څومره چې ځينو کسانو په ناپامۍ کې الګو ګرځولی دی؛ سمه ده چې ياد انګريزي اصطلاحات اوس زموږ د ملي ترمنالوجۍ برخه ګرځېدلي؛ خو له دې هاخوا يې تعقيبول، پښتو ژبې ته د ګټې پرځای زيان اړوي؛ ځکه پښتو د تورو له پلوه شتمنه ژبه ده، نو دا ژبه او ويونکي يې کولای شي چې د هرې ژبې کلمات په کټمټ ښه تلفظ او جذب کړي؛ بله دا چې انګريزي/انګلش يوه نړيواله او حاکمه ژبه ده، بيا نو اړتيا څه ده چې پښتو ادبيات ورسره په نامستقيم ډول (د يوې بلې ژبې له لارې) اړيکه ولري؟

هغه انګريزي کلمې او لفظونه چې د پارسي (ايران) له لارې پښتو ته رانوتي:

| پښتو | له پارسي نه پښتو ته | پارسي | انګريزي |
|---|---|---|---|
| کمېشن | کميسيون | کميسيون | Commition |
| کمېټه | کمېټه | کميته | Committee |
| کانوېنشن | کنوانسيون | کنوانسيون | Convention |
| انګلش | انګليسي | انګليسی | English |
| اپرېشن | اپراسيون | اپراسيون | Oppration |
| پارلېمنټ | پارلمان | پارلمان | Parliament |
| پوټېنشل | پوتانسيال | پوتانسيال | Potential |
| ... | ... | ... | ... |

رښتیا مخکې مو د عربي کلمو او اصطلاحاتو د اوښتون خبره وکړه، چې زه له دا ډول اوښتون سره موافق نه یم.

زما د ناخوښۍ دلیل، خدای مکړه د سلیقې او خپلچارۍ له امله نه دی، بلکې له ځان او ان ځینو نورو سره مې په دې اړه بحث او استدلال هم کړی او پایله یې دا شوې چې ځان او هغوی مې تر ډېره قانع کړي دي.

زه یوازې له هغه بدلون سره موافق یم، چې د ژبې ګرامري چوکاټ (قاعده) یې د بدلون جواز ورکوي، له دې پرته به بیا هم همغې ناآشنا خبرې ته غاړه اېښودل وي چې وایي: پښتو چې ثنګه ویل کېږي، همغسې لیکل کېږي.

که ځینې خبرې رانه تکرارېږي، نو ما وبخښئ؛ دا ځکه چې بیا بیا یې اړتیا پېښېږي؛ خبره دا ده چې هره ژبه د بلې ژبې ځینې کلمې او اصطلاحات منلی شي؛ خو قاعده یې نه؛ ځکه چې هلته قاعده تیاره شتون لري او د قاعدې ماهیت دا دی چې د نورو قاعدو د نفوذ یا ګډوډۍ مخه نیسي، نه دا چې د هر ثه مداخلې ته غېږه خلاصه کړي.

د بېلګې په ډول، (معنی) عربي کلمه ده او په دې کې د (ی) توری د اړوندې ژبې د ګرامر له مخې مقصوره/ممدوده الف بلل کېږي او د (موسی، عیسی، مصطفی او...) په شان د الف په غږ او وزن لوستل کېږي؛ خو دا چې دغه اصطلاحات/نومونه اوسمهال د پښتو په ګډون په نورو ژبو کې تر یو حده معمول شوي، دلایل یې ښکاره دي؛ اما زموږ د بحث اړوند موضوع دا ده چې دلته د (ی) په توري کې د یوې مشخصې ژبې د قاعدې اصول له ورایه ښکارېږي او که پښتو ژبه یې په همدغه حالت ومني، نو پکې شته ثرګنده قاعده په هېڅ ډول نشي منلی او په پایله کې د داسې تلفظ جواز ورکوي

چې اړوند غږ او وزن یې له مخکې ورته ټاکلی دی؛ لکه: (خدای، لمسی، سړی، منګی، لرګی او...)؛ خو دا چې زموږ ادعا د قاعدې پر منلو نه، بلکې د تورو او الفاظو پر منښت او جذب متمرکزه ده، نو د دې لپاره چې هم مو په معمول ډول یاد اصطلاحات/نومونه خپل کړي وي، هم د پښتو قاعدې ته ژمن پاتې شوي اوسو او هم مو د ژبو ترمنځ فزیکي (لفظي) او مفهومي اشتراک په پام کې نیولی وي، نو لیکو: معنا، موسا، عیسا، مصطفا او...

همدارنګه د عبدالرحمن پرځای عبدالرحمان، د اسمعیل پرځای اسماعیل، د اسحق پرځای اسحاق او... لیکل سم دي.

د تورو له منلو بیخي انکار نشي کېدای یا هم د کلمو د فزیکي بڼې بیخي بدلېدل ځکه منطقي نه دي چې موږ په خپله الفبا کې ټول اړوند توري منلي او ځای کړي دي؛ که چېرې دا ادعا وکړو چې (ح، ذ، ص، ض، ط، ظ، ع، ف، ق او...) توري د پښتو اصلي توري نه دي، نو تر دې پوچ او زوړ فکر به بل نه وي.

پښتو په ۴۴ تورو سمباله ژبه ده چې یاد ټول توري پکې شامل دي او همدارنګه بلها کلمې/اصطلاحات او نومونه شته چې د دغو تورو له برکته په پښتو کې داخل شوي او خپل ماهیت او ونډه یې ثابته کړې ده. لکه: حلوا، تذکره، عقل، علم، اطاعت، عبدالله، صبر، ظالم، ضرور، فکر، اشرف، قران، قطع، امان الله، طلا محمد او...

اوس که چېرې یاد نومونه په ترتیب سره الوا، تزکره، اقل/اکل، اېلم، اېتاات، ابدلا، سبر، زالېم، زرور، پکر، اشرپ، کران/کوران، کته، امانولا، تلامامد

او... ولیکو، څومره به معقول او سم وي؟ او څومره به موږ له هغو ژبو لېرې وساتي چې علمي او عقیدوي مشترکات ورسره لرو؟
د اړوندو کلمو (معنا، یعنې، معلومات، صحیح او...) په خپله - خپله بڼه لیکلو سره، نه یوازې د ژبو په بازار کې د نفوذ ونډه او پراختیا زیاتیږي، بلکې د تحریر په برخه کې د یو معیار پر وړاندې پابندي او ژمنتیا هم پیاوړې کیږي او هم شته اختلاف پکې له منځه ځي. دا چې څوک یې د لهجې له مخې څنګه لولي، پوره اختیار لري؛ خو په لیکلو کې یې د معیار تابعیت اړین دی.
دغه راز د علم او عقیدې پراختیا هم د هرې ژبې ویونکي اړ کوي چې په عیناً حروفو سره د بلې ژبې الفاظ ومني؛ ځکه چې د تورو په بدلون سره کله کله اړوند کلمه د مقصود ژبې له اصلي کلمې سره په ټکر کې راځي او یا خپل مفهوم له لاسه ورکوي. د بېلګې په توګه: قران په کران/کوران نشو لیکلی، قبر په کبر، عذاب په ازاب، حرام په هرام/ارام او... نشو لیکلی. د اطلس کلمه په اتلس نشو لیکلی، د قابل کلمه په کابل نشو لیکلی، او ، فیل په پیل نشو لیکلی او قهر په کهر/کار او...
همدارنګه د عربي (محضِ او ماضی) یا (اطلس، قابل، فیل، قهراو...) لفظونه که په پښتو کې په ترتیب سره (مازې او مازي) یا (اتلس، کابل، پیل، کهر/کار او...) ولیکو، نو د ویلو پرمهال به د لوستونکو لپاره په مفهوم کې د تفکیک مسأله څومره ستونزمنه وي؟
په پای کې د دې لپاره چې اړوند بحث لا نور هم روښانه او په زړه پورې شي، په بله ژبه کې د پښتو کلمو او نومونو لیکلو ته اشاره کوو.

**د بېلګې په ډول،** پخوا په عربي الفبا کې د (پ)، (چ) او (ګ) توري نه ول او د بلې ژبې (پښتو) په هغو کلمو کې به چې پ، چ یا ګ توری و، د پ لپاره به يې ب کاروله او د نورو دواړو لپاره به يې د (ج) توری کاراوه. مثلاً: پغمان ته به يې بغمان ليکل، لوګر ته به يې لوجر، ننګرهار ته به يې ننجرهار او اچين ته به يې اجين ليکل، چې اوس دا ستونزه پکې حل شوې او په کټمټ تورو يې ليکي، حتا ځينو يې لا عيناً تلفظ هم منلی دی.
همدارنګه د ځينو دلايلو له مخې په پارسي او اردو ژبو کې د (تورخم) لپاره طورخم ليکل کېد، چې اوس دا تضاد په پارسي کې تر ډېره له منځه تللی او ورته نور نومونه هم په عيناً بڼه ليکي. لکه: طورخم په تورخم او طوره بازخان په توره بازخان ليکل کيږي او... خو دا چې په اردو کې ولې دغه تضاد پر خپل حالت پاتې دی، شايد له پاکستان سره د سياسي کړکېچونو له امله وي چې اړوند سمبنت ته پکې پام نه دی شوی.

**پای**

## سرچینې/ منابع:


- اندرو رابینسن، تاریخچه پیدایش خط و نوشتار، ژباړه، یلدا بلارک، سبزان، شهر کتاب آنلاین، ۱۳۹۳ل.
- سیدي، سیدنظیم، ناول به څنګه لیکو؟، مومند خپروندویه ټولنه، جلال آباد، ۱۳۹۱ل.
- تابش هروی، سعادتملوک، راز و رمز نویسندگی، خیرالمهدي، هرات، ۱۳۹۲ل.
- اسدی، جواد عرب، الفبای داستان نویسی، کتاب سبز وېبسایټ، (۱۳۸۹)
- میرخیل، حبیب، د مقالې لیکلو لارې چارې، نجم ویبسایټ، http://najm.af
- فورسټر، اډوارډ مورګن، جنبه های رمان، ژباړه، ابراهیم یونسی، ایران پي ډي ایف وېب سایټ،https://www.iranpdf.com ، ۱۳۵۷ل.
- سلیمانی، محسن، فن داستان نویسی، ژباړه او ټولوونکی، محسن سلیمانی، کالای دیجیتل سایټ، https://www.digikala.com ، ۱۳۷۰ل.
- عبدي، ناهید، چگونه یک کتاب غیر داستانی بنویسیم؟، مدرسه نویسندگی وېب سایټ، https://madresenevisandegi.com.
- احمدي، نصیر احمد، برېبوکۍ، مومند خپروندویه ټولنه، جلال آباد، ۱۳۸۸ل.

- د تعلیمي نصاب ستندردونه، د تخنیکي او مسلکي زدکړو اداره، ژباړن، عبدالجمیل ممتاز، کابل، ۱۳۹۵ل.
- ښکلی، اجمل، کومې کلمې یو ځای او کومې بېلې ولیکو؟، تاند وېب سایټ http://www.taand.com، ۲۰۱۷ز.
- ډروتیا برنډ، نویسنده شدن، ژباړه، آرش محمد اولي، شهر کتاب آنلاین، ۱۳۹۵ل.
- ۱۳ راه برای حرفه ای شدن در نویسندگی به روایت نویسندگان بزرگ جهان، سایت کتاب، http://www.ibna.ir/fa/، ۱۳۹۳ز.
- براري، مریم، ۱۲ قدم برای تقویت مهارت نویسندگی، سایت پونیشا، https://ponisha.ir، ۱۳۹۴ز.